# ځرک

## د مذاکــراتو شپـږم پـړاو

د اشــرف غني فرمایشي جــرګه وننــکوله!!


شپاړسم کال، څلورمه، پرلپسې۱۱۱مه ګڼه،

ثــور۱۳۹۸ل، رمضان المکرم۱۴۴۰هـ ق، مئ۲۰۱۹م




## آیا د ولسي افغانانو خلاف به

امریکایي وحشت د جهادي فعالیتونو مخه ډب کړای شي؟!

## ترامپ آماده‌ء ترک متحدانش در افغانستان است



## الفتح عملیات

به دفتح عظیم توغ هسک کړي



## د طالبانو لخوا د وروستیو

## تندریزو بریدونو پیغام!



هرفرعون نیل ته راځي

# ځرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۱۱مه ګڼه،
ثور۱۳۹۸ل، رمضان المکرم۱۴۴۰هـ ق، مې۲۰۱۹م

**امتیاز :**

**دامتیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلدارې |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلدارې |


**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداره دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.


تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه



**پته :**

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# د مذاکراتو شپږم پړاو
## د اشرف غني فرمايشي جرګه وننګوله !!

د کابل د پردیپال او ګوډاګي رژیم مشر اشرف غني د خپلې فرمایشي او جعلي (لويې جرګې) په مټ چې دوه اوونۍ وړاندې يې په کابل کې جوړه کړه ، هڅه کوله ترڅو ځان له هغې داخلي رسوایۍ او بهرنۍ انزوا څخه خلاص کړي؛ کوم چې اسلامي امارت د خپلې بریالۍ او منطقي سیاسي تګلارې په مټ ورسره لاس اوګریوان کړی دی.

د داخلي رسوایۍ به یې ترډېر بل جوت او ښکاره مثال او په ټنده د شرم داغ بل کوم یو وي؛ چې د دولت له نیمایي زیاته بدنه، غړو اوسیاسي احزابو ورڅخه مخ واړوه او په غیر مستقیم ډول یې د اسلامي امارت د سولې ، ثبات او ملي داعيې پلوي او ملاتړ وکړ !!؟

په سیاسي او نړیوال میدان کې وخت په وخت بهرنیانو کابل ته ګرم او تاوده سفرونه کول ، په خارج کې به د افغانستان د روانې جګړې د تودوالي او پراخېدو لپاره بېلابېل کنفرانسونه جوړېدل، اشرف غني او ډاکټر عبدالله به په غبرګو الوتکو کې ورتلل او څو څو میاشتې به یې د هغو ناستو په لاسته راوړنو شخوندونه وهل؛ پخوا به له امریکا نیولې د ناټو هر غړي هیواد دا شعارونه ورکول ؛ چې تیار دي دومره نور او تازه دمي سرتیري د افغانستان جګړې ته ولیږي . مګر اوس د الله تعالی په خاص فضل او د افغان ولس د پاکو قربانیو په برکت امریکا تر بل هر هېواد څخه زیات په سولییز حل او د جګړې په خاتمې اصرار کوي.

له امریکایانو سره د طالبانو مخامخ نتیجه خیز مذاکرات ، د ماسکو او دوحې بین الافغاني غونډې او له نورې نړۍ سره د اسلامي امارت د سیاسي استاځو مستقیمو تماسونو او سفرونو کابل رژیم له مرګاني انزوا او تجرید سره مخ کړ.

اوس د امریکایانو په شمول هېڅ یو هیواد د کابل رژیم طرحو او خبرو ته غوږ نه نیسي، آن تر دې چې غوږ نیول ورته د وخت ضیاع بولي.

اشرف غني فکر کاوه ؛ چې د دوحې غونډې له سبوتاژ او د لويې جرګې په نامه له جعلي ډرامې څخه ځانته ګټه وکړي ، د جرګې د کرايي شويو غړو د لاسونو په پړقا کې د قدرت د اوږدیو یو مجوز ترلاسه کړي او د نمایشي سولې په اړه چې کوم منتر او فریب لري هغه به وربانديې ومني، خو د جرګې د پنځوسو کمیټو اکثریت غړو رسنیو ته په ډاګه وویل: چې ټول مواد ورته د جرګې د دارالانشا او ګمارل شوي پلاوي له لوري راتلل او د تېل کېدو هڅه به یې کوله.

بله دا چې که څېرې د جرګوالو خپل اختیار او رضایت وای نو د هغوي لومړۍ غوښتنه دا وه ؛ چې د جرګې له پایته رسېدو وړاندې دې نیمایي طالب بندیان چې شلو زرو تنو ته رسیږي ، پرته له کوم قید او شرط څخه پرېښودل شي ، دغه راز دې خارجي قواوې چې څومره ژر کېدلای شي له افغانستان څخه ووځي ؛ خو دا یوټکی هم پکې رانغی.

موږ په سر کې وویل ؛ چې د الله تعالی په ځانګړي نصرت پوځي او سیاسي میدان دواړه اوس د اسلامي امارت تر کنټرول او ابتکار لاندې دي ، د مئ په اتمه نېټه یې د کابل تر ټولو حساسه ساحه کې د امریکا د #کاونټرپارټ شبکه چې د امریکایانو د پوځي پلان جوړونې نامتو اداره وه او د کابل اداري د اردو د روزي ستون فقرات بلل کېده ؛ په څومره شدت او موثریت سره یې وځپله ، لسګونه خارجي استادان او مشاورین او بې حسابه داخلي مزدوران یې پکې له منځه یوړل.

له دې سره هم مهاله په دوحه کې د اسلامي امارت او امریکایانو ترمینځ د مذاکراتو ٦م پړاوو هم په بریالیتوب سرته ورسېد او په مهمو موضوعاتو همغږي او د نظر توافق راغلی.

د دوحې دغه ناسته پخپل ځای کې دا حیثیت درلود چې د کابل د جعلي جرګې په تدویر او پرېکړو د بطلان کرښه کش کړي او په واضحو ټکو اشرف غني او کرایه شوي ټیم ته یې ووایي؛ چې که هرڅومره لاس او پښې ووهئ د افغانستان د برخلیک په سر مو خبري او ناستې هېڅ ارزښت نلري ، که یې درلودلای نو لږ تر لږه خو به د اسلامي امارت او امریکایانو ترمینځ د مذاکراتو شپږم پړاوو یو څه ټکنی شوی او ورستی شوی وای . پای

# د طالبانو لخوا د ورستیو

# تندریزو بریدونو پیغام!

ارمان افغان

د۱۳۹۸ل کال دغویي میشتې په ۱۸مه نیټه دپلازمینه کابل په زړه (نوي ښار) کې دامریکادسفارت یوه پوځي اتشه چې د( کونټرپارټ) په نامه دخیریه مؤسسې په شکل کې يې تخریبي او جنګي فعالیتونه مخته وړل دطالبانو لخوا تر دقیقو او تندریزوفدائي بریدونو لاندې راغله او په ترڅ کې يې لسګونه بهرني روزونکي او افغان اجیران عسکر ووژل شول.

طالبانو ویلي: دکونټرپارټ پر مؤسسه يې برید په دې دلیل وکړچې داجیر رژیم چارواکوته دپوځي روزنې ورکولو سربیره د نوروبربنډو جنایتونو، وحشتونو اوظلمونو دسرته رسولو لپاره يې هم پلانونه ورکول او موږ دوی ددې مؤسسې دغه تخریبي هڅې او فعالیتونه له ډیر وخت څخه څارل

ازادي رسنۍ هم تردې حده مني او تائیدوي چې کونټرپارټ یوه داسې امریکائي مؤسسه ده چې دامریکا دنړیوالې پراختیاusaid اداري لخوا په افغانستان کې دامریکا دبري لپاره پوځي اودعوتي پروژې مخته وړې او هم دا راز دامریکا او کابل اجیر رژیم ترمنځ دپوځي عملیاتو د پلانونو دتنظیم او همغږۍ چارې برابروي

طالبانو ویلي: یادې شبکې ځیني داسې ځانګړې بنسټونه هم جوړول چې هغو کې آن داجیر رژیم مشر اشرف غني په ګډون سربیره نورو لوړپوړو اجیرو چاراواکو به هم ګډون کاوه اوپه دې علاوه د اینجیل په نوم یوه بله پروژه يې هم ترلاس لاندې وه چې دهغې له لارې يې په افغاني ټولنه کې دمختلفو بې لاریو، انحرافاتو، فحاشیو او دښځینه وو او نارینه وو یوبل سره دخلط کولو هڅې هم تنظیمولې.

دهغه خبرپاڼې له مخې چې دطالبانو د ویاند ښاغلي ذبیح الله مجاهد لخوا دیاد برید معلوماتوشریکولو په موخه رسنیوته لیږل شوې په دې شپږساعته اوږده جګړه کې درې فدائي مجاهدینو( هریو حمزه پرواني، حذیفه کونړي او حافظ محمد کندهاري)برخه درلوده

لومړۍ هغوی دهغه ودانۍ ( چې ترې یادې شبکې به دخپلوتخریبي فعالیتونو لپاره استفاده کوله) په مخکې یو تکتیکي چاودنه وکړه او په دې سره هلته جوړ امنیتي کمر بندونه له منځه یووړل ورپسې په مختلفو سپکو او درنو وسلو سمبال فدایان ودانۍ ته داخل شول او هلته يې په امریکایانو او دهغوی په ګوډاګیانو تندریز بریدونه شروع کړل او دودانۍ خونوته ننوتل اوهلته پټ شوي بهرنیان اواجیران يې په نښه کول اوبیا د مرکزدننه ښولویې چاودنې وکړې دکومو په سبب چې دښمن ته دسراومال بیدریغه زیانونه واوښتل

طالبان وایي دوی له ډیرې مودې نه پلان درلود چې یاد امریکائي مرکزتخریب او له منځه یوسي زکه هم دلته امریکایانو دخپل ناروا اشغال دپایښت لپاره خپلواجیرانوته مختلفې برنامې اوپلانونه ورکول اوبیا يې دهغو په عملي کولو کې هم ورسره ونډه اخسته ، له دې وجې د امریکا حکومت ته زیات اهمیت لاره او

هرکال بـه یـې ورتـه دامریکـا د نړیـوالې پراختیـا (usaid) اداري لخـوا شـاوخوا ۷۰ملیونه لګښتونه ورکول چې په ټوله کې هـدف یـې افغانسـتان کـې داشـغال ریښـې غځـول او پـه اخلاقـي او اجتماعـي لحـاظ دافغانانو ګمراهي او بې لارې ته هڅول هم وو

دنورو فعالیتونو ترڅنـګ یـې افغـان اجیـرې اردو لپـاره داسـې روزونکـي او استادان (چې هغوی داسلامي مقدساتو او افغاني ارزښتونو لکه مسـجدونو، مدرسـو، ملایانو او دیني علماووڅخـه کرکـه اونفرت ولري) روز ل چې پـه دې لړکـې صفـریک، صفردو پـه نـوم وحشي۔ قطعـې چـې هیـڅ انساني او اسلامي کرامت نـه پیـژني اونـه افغاني عنعناتو او کلتـور تـه درنـاوی لـري مهـم چـارواکي یـې دیـادې مؤسسـې لخـوا تربیه او روزل شوي

ددینه وړاندې دغویي په ۱۶مـه نیټـه طالبانو دبغلان امنیې قوماندانی پـه ودانـۍ هـم پـه یوبسـاري کامیـاب بریـد کـې دامریکایي اجیر رژیم ترسلو زیـات عسـکر او افسران ووژل ، دبغلان په ډله ئیز فـدائي بریـد کـې دطالبـانو پنځوفـدائي مجاهـدینو ګډون درلود، محمد برات په نـوم یـو فـدائي مجاهـد لـومړی دامنیـې قومانـدانی نظـام قراول کـې دچاودیـدونکو توکـو څخـه ډک هاموي ټانک ته په انفجار ورکولوسره ټـول امنیتي کمربندونه لـه منځـه ویـوړل او بیـا دهغـه وروسـته سملاسـې څلـور فـدائي مجاهــدین هریــو عبداللــه، عزیزاللــه، محمدیوسـف اورحمـت اللـه قومـدانی تـه ننوتــل او هلتــه ترشپږســاعتونویې اوږد مقاومت وکړاو ترسلو نـه زیـات عسـکر او دولتي صاحب منصبان یې ووژل

هو! دابریدونه دطالبانو لخوا په داسې مهال کې صورت نیسي چې هلتـه پـه قطـر کې دامریکا اوطالبـانو تـرمنځ دشـپږم پـړاو خـبرې یوحسـاس او نـازک پړاوتـه داخـل شوي دي، نوایا په دومره حساس وخـت کـې په دومره حساسو اهدافو بریدونه امریکـا او دهغې اجیرانو تـه څـه پیغـام لـري؟ طالبـانو پخپله خبرپاڼه کـې دپیغـام سرلیـک لانـدې داسـپیناوی هـم کـړی دی چـې څـو امریکـا دافغانســـتان داشـــغال، او دلتـــه دخپلـــو وحشـــیانه او جنګـــي فعـــالیتونو لاس پـــه سرنشي او هم یې غلامـې کـړې او عسـکر داسلام او افغانیت ضـد جنایتونوڅخـه لاس پـــه سرنشيـــ د دوی لخوابـــه ددغسيـــ تندریزونو بریدونو هدف ګرځي او هیڅکلـه به په ارامه خوب ونکړي

دکتونکو په اند: طالبانو داشرف غني دسولې ضد برناموتـه هـم غـابس مـاتوونکی ځـواب ورکـړ، چـې دی دخپلـو بـادارنو پـه سیوري کې هم د مجاهـدینو دبریدونوڅخـه خوندي ندی او چې کله ترې هغوی کډه بار کړې نو یـوه ورځ بـه یـې هـم پـه وړانـدې ټینګ نه شي.

دهغه لخوا دسـولې پـه نامـه دجعـلي مشورتي جرګـې وروسـته چـې فیسـبوکي خیاطـان بیـا څـه ناڅـه لاس پـه کـار شـوي هغـوی تـه هـم پیغـام دی چـې نـور ددوی ممـدوح( اشرف غنـي) پـه افغانسـتان کـې راتلونکی نلري نن دی که سبا هغـه تیښـتې ته ځان جوړوي او بیا دوی به لکه دلیونیـو سپیو پشان پخپلمنځ په یوبل خـولې لګـوي بنـه داده چـې نـور داشرف غنـي دبیخایـه ملاترڅخه قرارشي که اشرف غنـي بیـا هـم پښې خرې کړې او ونه وت نودکونټرپارټ مؤسسې دفتر هم دارګ پـه څـو کیلـومترۍ او دیپلوماتیـک زون کـې واقـع و بیـا هـم طالب فدایان هلته ورسیدل او پـه بـل مـخ یې را نسکور کړ همداسې به یوه ورځ پسې ارګ ته فدایان ور ننوزي او اشرف غني به سره دخپلې کابینې او سلاکارانو هـم هلتـه تخته کړي ان شاء الله

په دې تازه بریـدونو سره طالبـانونړۍ ته هم داپیغام ورکړ چې دوی دخـورا لـوی ظرفیت خاوندان دي چې په یووخت کـې پـه ټولو محاذونو خپل فعالیتونـه روان سـاتلی شي که یوطرف ته دامریکا سره په مخـامخ خــبرو بوخـت دي او هــره ورځ ورسره پــه مجالسوکې ګډون کوي نو بل خـوا دخپلـې داعیې څخه هم ناست ندي اوله افغانستانه دخارجي اشغالګرو عسکرو دشـړلو پـه هـوډ یې خپل پـوځي او جنګـي تهدیدونـه جـاري ساتلي څو امریکا اونړیـوال و فهمـوي چـې په زور کلي نه کېږي او طالبانو ته دپـرون په څیر نن هم دخپل هیـواد او خلکـو دعلیـا مصالحو نه دفاع اولیت لري نه دامریکا سره خبرې اترې...

په نویو عملیاتو سره دا هم جوته شوه چې طالبان له امریکا څخـه مرعـوب نـدي بلکې په مقابل کې یـې دبـري لـه احساسـه بــرخمن دي ولــې کــه دامریکانــه هغــوی مرعوب وای هیڅکله به یې په یووخت کې خبرې او جنګ دواړه جاري نه وای سـاتلي ښکاري چې طالبان دبري له قـوي احساسـه برخمن دي او دامریکایانو ترتاثیر لانـدې نـه دي او نه به په اینده کې راشي.

# دافغانستان جنګ

## دامریکا غرور ډوب کړ!!







**میړنی افغان**

دامریکا او طالبانو ترمنځ دشپږم پړاو خبرې دیو ورځنی دمې وروسته دروژې په دویمه بیا په دوحه کې پیل شوې.

د شپږم پړاو خبرې دتیرې چهارشنبې په ورځ شروع شوې وې او دتیرې دوشنبې په ورځ (یعنې دروژې په لومړۍ ورځ) ونشوې او دروژې په دویمه ورځ (سې شنبه) بیا پیل شوې .

دخبري سرچینو په وینا:دشپږم پړاو خبرو ددمې وروسته د دواړو خواوو مرکچیان د خبرو نه خوښ ښکاریدل او تمه یې درلوده چې ددې پړاو خبرې به څه ناڅه لاسته راوړنې ولري.

درسنیو له قوله: دتیرې شنبې په ورځ امریکایې استازیې زلمي خلیل زاد دخبرو له پیل وړاندې سهارمهال په قطر کې داسلامي امارت دسیاسي چارو مرستیال او دقطر دسیاسي دفتر له مشر ملا عبد الغني برادر سره هم لیدلي وو چې دهمدې لیدنې وروسته دزلمي خلیل زاد په لهجه کې بدلون راغی

ددینه وړاندې خلیل زاد دخپل ټویټر په یو پیغاکې لیکلي و چې له طالبانو یې غوښتني وسلې په زمکه وغورځوي ! ددې په غبرګون کې دامارت ویاند (ذبیح الله مجاهد) پخپل ټویټرپیغام کې وویل: امریکا دې دطالبانو او مجاهدینو لخوا په زمکه دوسلو ایښودو خبره هیره کړي.

ددې نه وروسته خلیل زاد په ټویټر پیغام کې وویل: دهرې سولې پایله په زمکه دوسلو ایښودل وې او امریکایان ددې ګام پورته کولو ته چمتو دي

په عین وخت کې دهیواد په داخل کې د دواړو خواوو ترمنځ په جګړه کې هم شدت رامنځته شوی، چې له امله یې دکابل رژیم او امریکا یان سرسام ښکاري ، لګیادي پرلپسې دخپلې ماتې غچ داخستلو لپاره دملکي خلکو کورونه، دوکانونه، روغتونونه اوپابریکې په نښه کوي اوبیا اعلانوي چې په فلاني ولایت یا ولسوالۍ کې یې دومره شمیر طالبان او مخالفین مو ووژل!! حال داچې په ښکاره عام ملکي وګړي په شهادت رسوي او دهغوی په کورونو او دوکانونو باندې بمونه غورځوي په مقابل کې دطالبانو لخوا الفتح عملیات هم ښه موفق اوبریالي روان دي په خاصه توګه دهیواد په شمال لویدیځ او شمال ختیځ ولایتونو کې یې دبریدونو او عملیاتو ترکیز ډیر کړی دی اوپراخې سیمې یې ددښمن دشتون څخه وزګارې کړې دي چې په سبب یې دامریکایانو او دهغوی دګوډاګیانو مورالونه پریوتي او دخپلو زیانونو غچ دولسي خلکو په وژلو سره اخلي.



لـه سیاسـي ډګـره چـې دطالبـانو دېرمختیـاوو خبرونـه رازي او امریکایـان هـم ورتـه خوشـبیني ښـیي لـیکن ترډېـره اصـل حقـایق لا هـم روښـانه نـدي، او وضعیت نه معلومیږي چې په کومه خـوا روان دی ؟ ځیني شنونکي دامریکایـانو کردارته په دې وجه دزیات شک په نظر ګوري چې امریکـا دجګـړې د پـای تـه رسولو په برخه کې مخلصانه نیت ولـري دهغـوی پـه انـد پـه دغسـې مهمـو اوحساسـوموادروکې دامـر یکایـانو او غربیانو دا پخوانی مشترک عـادت دادی چې تل خپل اصلي اهـداف دپـردو ترشا پـټ سـاتي او پـه ظـاهري اعلانـاتو او جعلي شعارونودخلکو دتیرایستو کوښښ کـوي پـه مخـامخ خبـرو اوبیـانیوکې تـل راښـکونکي الفـاظ او کلمـې کـاروي ځوخپل مخاطب یا اوریدونکي تیرباسي اوخپـل اصـلي مقاصـد [چـې هغـه پـه حقیقت کې د امریکـا د سیاسي عزایمـو حیثیت لري] بیرون تـه نـه ښـکاره کـوي، هیڅکله دا نـه وایـي: راتلونکي عـزایم یې دا، دا دي ؟ اوپه اینده ک بڅه پلان یـا اراده لـري! دامریکایـانو او غربیـانو پخوانی مـزاج دا دی چې هغـوی خپـل اصلي عزایم دپردو ترشا ساتي ،ترکومـه چې فکرکېږي امریکایـان دطالبـانو سـره هم دخپل دغـه پخـواني عـادت اومـزاج نه کار اخلي دهغوی لوی مرکچـي خلیل زاد چې د مبهمو دیپلوماتیکو الفاظو پـه استعمال کې بې پناه مهارت لري له هغه کله په غیرارادي شـکل دامریکـا داصـلي عزایمو خبره را ووځي، ځو ورځې دمخه دنوموړي داتویـټ [ چـې لـه طالبـانو یـې په زمکه دوسلو ایښودو غوښتي] دامریکـا

ددغه ذهنیت عکاسي کـوي او دا شـک قـوي کـوي چـې امریکـا طالبـانو سـره پـه خبرو کې دخپل پخواني ثقافت نـه کـار اخلي او خپـل اصـلي عـزایم دهغـوی او نړۍ دوارو څخه پټوي

زما په فکر دامارت مرکچـي پـلاوی باید ځیر اووسي او دامریکایـانو دمغزونـه دغـرو نشـې ویسـتلو لپـاره دي امریکاتـه خپله څېره په اوبو کې داسې ورښـکاره کړي چې امریکانور ددینه زیات وحشت اوبربریـت نشـي کـولی، داسـمه ده چـې داسلامي هیوادو واکمن به دامریکا څخه په ډار او خوف کې مبتلی دي، لـیکن پـه افغانستان او عراق کې دامریکاناکـامی او دبیدریغه جنګي وسلو او وسـائلو دضـایع کیـدو وروسـته دنـړۍ پـاوکم دوه ملیارمسلمانان لـه امریکا نـه هـیڅ ډار او خوف نلري زکه امریکا خپله دې نتیجې

ته رسیدلې چې دومره لـوی شـمیر خلـک دخپل مسیر نه اړول اسان کـار نـدی ولـې که بالفرض امریکا او مغرب دې کار تـه ملا وتړي هم، سرته یې رسولی نشي او پـه دې ارمـان کـې بـه یـې ټـول وسـائل ،امکانات او اسباب به یې فنا او جنګ پـه سـمندرکې ډوب شـي ،امریکـا دلتـه( افغانستا کې) په تیرو اتلس کلو کې چې څومره خپـل څـومره وسـائل او وسـلې ضـایع کـړې کـه دکـانګریس د( ډبیـټ) ارقام ولوسـتل شي معلومـه بـه شي چې امریکا دعراق او افغانستان په جنګ کې څـومره وسـائل غـرق کـړي ؟ هـو! دغـه زیانونه امریکـا تـه دحکومـت پـه سطحه پیښ شـوي یعنـې کـه وسـلې او جنګـي وسـائل ضـایع شـوي څـو دریاسـت او دولت ضایع شوي، دافرادو او اشخصـو لپـاره دجنـګ دوام ګټـه لـري، ښـکاره ده



چې دامریکایې حکومتونو زیاتره مشران دتیلو نړیوال سوداګردي، لکه بوش او دهغه ټول ټیم چې دتیلو سوداګروو هغوی ددې لپاره چې دخپلو تیلو کاروبارتر راتلونکو سلو کلو پورې خوندي کړي په عراق یې او افغانستان یې حمله وکړه، نوتراوسه چې په افغانستان او عراق کې امریکا ته څومره زیانونه اوښتي دي دامریکا خزانې ته اوښتي نه د امریکا سیاستوالو او چارواکوته! ځکه هغوی ګټه ترلاسه کړه رلاسه کړه ددې ټولو باوجود اوس امریکا چې دافغانستان او عراق په جنګونو کې کوم زیانونه ولیدل ددې وروسته به دبل هیڅ دمستعمره ګرځولو هوډ ونکړي څه داچې امریکادي دنړۍ ۵۷هیوادوسره ځان په جنګ کې ښکیل کړي

رازودیته چې جنګ نه دامریکا په ګټه دی او نه دافغانانو، اونه د دواړو ترمنځ ښکاره ټکر په خیر دی ، باقي دا ډار چې امریکا به جګړه هم اوږده کړي دامریکاله اوسني حالت سره سمون نه خوري، زکه امریکایانو درک کړې چې د جګړې اوږدیدل دامریکا نړیوال وقار او رعب له منځه وړي او اندیښنه شته که جنګ نورطول ونیسي ممکن ۸۹کلو کې دشوروي اتحاد پشان دامریکا متحده ایالات هم یو هیواد پاته نشي او څو برخویا هیوادو به وویشل شي

ولې دیوې اوږدې مودې راهیسې امریکا کې دمختلفو ایالاتونو لخوا دبیلتون غوښتنې هلې ځلې روانې دي، څنګه چې دشوروي اتحاد په مهال دهغه دقبضې لاندې مختلفو هیوادونو کې روانې وې، خودروسیې دځواک له ډاره چا ښکاره غبږ نشو پورته کولی، کله چې شوروي افغانستان کې جګړې ته دوام ورکړ، په نتیجه کې یې وسائل او وسلې دجنګ په لمبو ایره شوې او اقتصاد یې د صفر درجې ته را ټیټ شو ، بیا دهیڅ هیواد داستقلال لار چا بنده نکړای شوه ویل کیږي شوروي سره ۲۵زره اتوم بمونه وو خو ددې باوجود هغه دهیوادونو او قومونو د ازادۍ لار بنده نکړای شوه او ټول پرمختللی ځواک یې دخاورو سره خاورې شو په ورته توګه دامریکا هم په افغانستان کې بری ترلاسه نکړ او نه به یې په اینده کې ترلاسه کړي.

په پوځي ډګرکې دامریکا ماتې یوبرملا حقیقت دی او ورته جوته ده چې دزور لارورته تاوان لري او په جنګ درانه لګښتونه راځي او بې شمیره وسائل او اسباب یې پکې ډوبهدای شي ولې افغانستان کې دامریکا یانو د پلان او اټکل نه په سوونه ځله ډیر جنګي وسایل تخریب او اسباب یې ضایع شول!! تراوسه افغانستان کې چې دامریکا څومره وسائل او اسباب غرق یا ضایع شوي دهغو په وجه نن امریکا پر بل کوم هیواد دحملې توان نلري که همدا نن یې د کوم بل هیواد سره جنګ پیښ شو امریکابه هیڅکله پکې ځان ښکیل نکړي ولې په دې سره دخپلو نورو وسائلو اوجنګي توکیو دضایع کیدو او ډوبیدو خطر احساسوي هو! ددې لپاره چې نړیوال ترخپل رعب لاندې وساتي خصوصاً اسلامي دنیا دخپلمنځي رقابتونو او انتشارنه په ناوړه ګټه اخستو خپل خاص خلک تقویه کوي، هغوی په واک کینوي او د خپلې خوښې کار ترې اخلي.




# به دفتح عظیم توغ هسک کړي

شهیدزوی

څو ورځې وړاندې دافغانستان اسلامي امارت په هیواد کې د مېشتو یرغلګرو او د هغوئ د ملاتړولاسپوڅو پرضـد د(الفـتح) په مبارک نوم نومول شوي نوي پسرلني پوځي عملیـات اعـلان کړل.

نړۍ ولیدل چې دنوي پلان،نـوي احسـاس،نوي ولولې،نـوي عزم او نویو امیدونو سره مل داعملیات پـه هماغـه ړومبـۍ ورځ هیواد شموله وواو طغیاني څپې یې ورځ تر بلې ګړنـدۍ کیـږي، پراخیږي او بریالي کیږي.

په تېرو کمو ورځوکې مجاهدینوپه شمال، جنـوب ،جنـوب لویدیځو ختیځواو مرکزي ټولوولایتونوکې پردښمن ملا مـاتوونکي ګوزارونه وکړل ګڼ فوځي مرکزونه اوپوستې یې تـرې ونیـولې او ښه دېرځاني اومالي تلفات یې ورواړول.

پخپله ددښمن لوړ پوړي چارواکي پدې اعتراف کـوي چې د هیواد ګڼ ولایتونه د سقوط تر تهدید لاندې دي، د ولایتونو په داخل کې د هرولایت والي اړونده ولسوالیو ته د ځمکي لـه لارې سـفر نـه شي کـولای اوپـه ۳۴ ولایتونـو کـې د رژیـم اداري او امنیتي داوئر یواځې د ولایتونو تر مرکز پوري مخ په محدودېـدو دي او په ولسـوالیو کـې ولسـوالان او اړونـده پرسونل یـې ټـول د ولسوالۍ په چاردیواري کې محاصره دي چې دامریکایانو اونـورو بهرنو اشغالګروپه شتون کې دا دمجاهدینولپاره ډېـره سـتره بریـا ده .

د الفتح په نوم نویو اعلان شویوعملیاتوکې مجاهدینوته په ډېرتاکید حکم شوی چې مجاهدین به شرعي اصولوته کاملاً ژمـن وي ؛هدف به دالله تعالی رضا او مقصد بـه داشـغال اوفسـاد لـه

منځه ووړل وي او په عملياتو کې بـه د ولسي- خلگـو د سر اومـال اوملي شتمنيوساتنې ته ډېره پاملرنه کېږي .

چې د الله په فضل تر اوسه د مجاهدينو د عملياتو په ترڅ کې داسې پيښه نه ده رامنځتـه شـوې چـې قربانيـان يـې ولسي- وگړي وي.

په سرنوالفتح عملياتوکې يواځې په فوځي جانـب تـر کيـز نـه دی شـوی ، بلکـې لـه فـوځي فعـاليتونو سره يـو ځـای يـې د دعوت او د دښمن له ليکو څخـه دملي اردو، پوليسـو، اربکيـانو اوپه نورونومونوغولول شوي افغان ځوانانو دراجلبولو پروگـرام بـه هم پر مخ بيول کيږي.

الفتح عملياتو کې ددښمن صفونوته دنفوذي مجاهدينو په ورننويستلوهم تاکيدشوی چې دې تکتيک د ښمن ډېر وارخطا کړی.

د پـوځي استحضـاراتو ترڅنـــگ د الفـــتح مطبوعـاتي پوښـښ تـه هم ډيره توجه شوې، د اســـلامي امـــارت ويانـــدويان پـــه ډيـــره چټکتيا سره هره پوځي بريـا لـــه رســـنيو سره شريکـوي ، د امـارت اړونـد رسنيز وسائل يـې هـر فعاليـت پـه خپـل وخـت نشر- او تحليلـوي اوسـمعي او بصري څانگه يې د هرې پيښـې ژونـدۍ صـحني او انځورونـو تـر نړيوالو مطبوعاتو رسوي .

هسې خو پرهبواد دصليبي اشغالگرو ديرغل نه پس چې لـه کله نه جهادي صفوف منظم شوي او جهاد زور اخستـی نـو هـره راتلونکې ورځ دتېرې په پرتله بهـتره ثابتـه شـوې ؛ هـر راتلـونکی کال دتېر نه ددښـمن لپـاره هلاکـونکی او هـر راتلـونکی پسرلـی ورته دتېر نه زيات مورال بيلـونکی او ورخطـا کـونکی گرځېـدلی چې پدې روښانه حقيقت دښمن هم بيـا بيـا اعـتراف کولـو تـه اړشوی خو سږنی کال له تېرو ټولو کلونو ممتاز شو؛ دالفـتح پـه

نوم دفتحونه ډک داپسرلني عمليات پـه داسـې وخـت کـې پيـل شول چې لا لـه وړانـدې اسلامي امـارت تـه پـه سـياسي ډگرکـې ډېـرې سـترې اوتـاريخي سـوبې پـه نصـيب شـويدي او اشـغالگر دښـمن لـه خپـل لـوري اسـلامي امـارت تـه دسـولې اومـذاکراتو خواستونه کوي او غواړي چې له همدې لارې په فوځي ډگـر کـې په خپلې سترې ناکامۍ پرده راواچوي .

۱۸ کلونه وړاندې پرافغانستان ديرغـل لپـاره دراپيـدا کـړې پلمې دختمولو لپاره دافغانستان اسلامي امارت په مسلسـل ډول امريکـا تـه دمـذاکراتو دعـوت ورکـاوه خـو پـه خپـل زور او زرو مغرورې امريکا داسلامي امارت دې غوښتنې ته التفات هـم نـه کاوه او نه يې په مادي لحاظ کمزوري افغانان ددې وړ بلل چې دمذاکراتو په مېز ورسره دڅو دقيقولپاره کيني.




خودافغانانو دسپيڅلي جهاد پـه برکت چـې امريکـا او اتحاديـانو يې شکست وخوړ نو دغـرور دنـگ منارونـه يـې داسـې ونړېدل چې اوس له خپل لورې اسلامي امـارت تـه دمـــذاکراتو خواســـتونه کـوي ؛داسـلامي امـارت دروازه ټکـوي دوتلـو لپـاره پُرامنـه لار غـواړي؛ اوهماغـه امريکـاچې ۱۸ کالـه وړانـدې د ۱٦ دقيقو لپاره هم داسلامي امارت سره خبرو ته نه وه تياره اوس يې ډېر دلـوړې پـايې هيئـت پـوره ۱٦ ورځـې داسلامي امـارت دنماينـدگانو مخـې تـه کينـي ؛ ورنـه دوتلـولار اوداډاډغواړي چې له افغانستان نه به پر امريکا حمله نه کېږي.

دا اوس دافغـان ولـس اوټـول مسلمان ملت لپاره دډېـرې خوښۍ او دالله تعالی دلوي شکر مقام دی چې هغه امريکـاچې دټولې نړۍ يواځينی لوی ځواک گڼل کېږي ؛دنړۍ دټولوپرېکړو ځان مالکه بولي ؛ په خپل مادي طاقت بې حده زياته مغروره ده اوپه خپل تاريخ کې يې دډېـرو لويـو سـتونزو دحـل لپـاره دخپـل دښمن سره دومره اوږ ده مذاکرات ندي کړي .

خو دافغانانو دسپیڅلي جهاد په برکت چې امریکا داسې شکست وخوړچې په خپل تاریخ کې یې داسې شکست نه دی خوړلی نواوس به دخپل مقابل سره داسې اوږدو ناستو ته هم اړ کېږي چې په خپل تاریخ کې یې ورته ځان اړ نه دی ګڼلی

دقابضوځواکونو دناپاکه وجود نه دهېواد دآزادۍ او د افغان ولس او ټول مسلمان ملت دهیلوسره سم دلته دیوآزاد اسلامي نظام دنفاذ په لار کې دا یوه ډېره عظیمه لاسته راوړنه ده.

داچې مجاهدین دبل هروخت په نسبت په لوړجهادي عزم سمبال دي ؛ له حربي تجربو ؛ پرمختللو وسلو ولسي ملاتړ؛ ددښمن په صف کې له نفوذ زیات برخمن دی نو دالله تعالی نصرت ته په هیله مندۍ زیات امید شته چې سږکال به فراخې سیمې ښارونه اومرکزونه ددښمن له شتون نه پاک شي.

په دې مبارک نوم دپسرلنیو دعملیاتو پیل یوداسې نېک فال، تاریخي او ویاړلی ګام دی ،چې اغیز به یې ان شاءالله تعالی دصدر اسلام د(فتح مکې) د سوبمني غزوي په تعاقب دومره ډېر وي ،چې دغاصبو امریکایانواو ددوئ داشربانو اتحادیانو داستیصال او ریښو ایستلوپه پایلو به پای ته ورسیږي اولکه په فتح مکه کې چې داسلام د برم او عظمت توغ هسک شو

پدې عملیاتوکې به هم مجاهدین په خپل هېوادکې دخپلې فتحې توغ هسک کړي اودخپل توان سره سم به داسلام د حاسدو غلیمانو څخه دتېر اسلامي امارت او اسلامي عظمت دنسکورولوپه اراده دوحشت نه ډک یرغل انتقام هم واخلي او دمسلمانانو سینې به پرې یخې کړي.

رښتیا هم چې پداسې متبرکو او تاریخي نومونو خپل عملیات نومول ډېر مؤثریت لري او هم خپل مجاهد ولس ته دخپلو اسلافو دتیر عظمت او مجد تاریخي کارنامې وریادوي ،داسلامي امارت داسې نوښتونه ،که دیوې خوا دخپلو اسلافو دغزواتو یاد تازه کوي او داسلام دتېر عظمت نه خپل قام خبروي، نو دبلې خوا په سنګرونو کې ناستو مجاهدینو ته ددې روحیه ورکوي، چې دخپل پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) په پل پل اېښودل، ستاسو دفتحې تضمین درکوي او ژر به وي، چې تاسو هم ددې جهادي مبارکو عملیاتو په برکت پر غلیم برلاسې شئ او فتح عظیم به ستاسې په برخه شي !!

موږ چې اوس دفتحې ترساحله رسېدلي یو امېد لروچې الفتح به مو وروستي فاتح عملیات وي

دا عملیات به دامریکا ټول غرورپه افغانستان کې دفن کړي او ټوله سیمه به یې دشر نه دتل لپاره مصئونه شي. ان شاءالله.



عابد

# د ثـور د ۷ او ۸ په یاد

یوځلوبښت کاله وړاندې په کمونستي فکر روزل شویو چې د ثور په ( ۷) د وینو بهیر روان کړی تر ننه لا روان دی، نه یې دغه خاوره خړوبه شوه او نه هم د دې خاورې دغریب ولس ګناوې پرې ومینځل شوې او لا هم په هماغه ډول او لاترهغه هم زیاتي رواني دي .

دملامت او سلامت خواوې او دلایل ډېر دي، یوهم نه یادوم اونه په هغه خوا ورځم° یواځې یوځه وایم او یوه پوښتنه کوم او هغه داچې ایا دیوه ولس مادي ترقي دهغه ولس له فکري او عقیدوي بدلون پرته ممکن نه ده ؟!!

دلته خو که د مارکسیزم، سوسیالیزم یا اشتراکیت دفلسفې پلویانو زندانونه ډک او دمیلیونونو انسانانو ککرۍ ترخاورو لاندې کړې په همدې نامه چې یومترقي هیواد رامنځته کوي اودنړۍ له سیالانو سره به یې سیال کړي، ځکه یې نو مرتجع !!

ولس له منځه ووړ ترڅو دترقۍ مخه ډب نه شي او افغانستان دیو مترقي کمونستي هیواد په حیث تبارز وکا.

که د کپټلیزم او لیبرالیزم پلویان او دبشر دحقوقو مدعین پرې دکلسټر بمونه راغورځوي او دوخت په ترټولو پرمخ تللیو وسلویې په نښه کوي، دجزېرو زندانونه پرې ډکوي هم ددې لپاره ترڅو خپله عقیده پرېږدي او د آزادۍ او دیمکراسۍ په نوم جوړه تګلاره خپله کړي، چې ترقي یې په برخه شي او دیومترقي ولس په څېر په نړۍ کې سر راپورته کړي .

اوکه په بل هر شر و فساد وژل شوي او وطن یې کنډواله شوی هم یوه توجیه ورته لټول شوې، او په خپل فکر کې ورته د ساتلې ترقۍ په لورینه یې وژلي، ټکولي او بې وطنه کړي،که څه هم د دې ټولو ناخوالوتړاو به د ثور د (۷) له کودتا سره سر نیسي، خو دلته هر قاتل په مظلومو افغانانو لاس په دې پورته کړی چې په مرګ یې دلته ترقي او پرمختګ راځي .

دثور ( ۷) او (۸) دوړاه جلا ورځې دي او هره نېټه جلا حیثیت او بېله فلسفه لري، خو اوس دواړه په یوه ورځ یادیږي او ډېری خلک دواړوته د ذم او تقبیح په یوه سترګه ګوري ، سره له دې چې د ثور ( ۷) دشوروي اشغال د پیل هڅه او دثور (۸) د دغه اشغال په وړاندې دپاڅون او افغان مسلمان مجاهدو لس داسلامي انقلاب دبري ورځ ده، لومړۍ ددغه هیواد په تاریخ تور داغ او دویمه ددې خاورې دځپلواکۍ دلرغوني تاریخ یو باب دی .

خو دریغه چې دوخت دمشرانو دنااهلۍ او بې کفایتۍ په وجه دغه ورځ هم سپینه پاته نه شوه او د دوی دبې کفایتۍ او خودخواهۍ تورو عملونو تور داغونه پرې ولګول اونن خلک دواړه یوځای او یو ډول بدې پېښې بولي .

یوځلوبښت کاله وروسته بیا دغربي ښکېلاک په وړاندې دځپلواکۍ د دوو لسیزو اوږد مقاومت اوجهاد د بري په پوله ولاړ دی، ددغه تاړاک امپریالستي نظریه او مغرور ځواک هم د افغان مجاهد ولس په وړاندې مات دی اولکه دتېر شوروي په څېر له افغانستانه وتو ته دعزت لارې لټوي، لکه څنګه چې هغه مهال شوروي ته وفادار افغاني ګوډاګیان وارخطا، لالهانده او سراسمه وو° نن هم د غربي دیمکراسۍ دغه بده اولاده همداسې سربداله او وارخطا دي ، وذلک جزاء من حارب الله ورسوله ...

خو هغه څه چې داخل مونږ ته ډاډ راکوي اوجهاد مو دبري په پوله له ضیاع او هدرکېدوساتي ° د دغه غربي ښکېلاک په وړاندې دجهاد یوصف، یو قیادت او داسلامي امارت متحده رهبري ده چې ان شاءالله بیابه له هغه رنګه بدو پایلو سره نه مخ کېږو .

وماذلک علی الله بعزیز .




# د اشرف غني مشورتي

## که اجرتي لويه جرګه؟!

شاهد (غزنيوال)

بالاخره د افغانستان د ولس او مهمو سياسي جريانونو له تحريم سره سره د اشرف غني مشورتي لويه جرګه پرانستل شوه.

ياده جرګه په داسې حالت کې پرانيستل شوه چې د کابل مرکزي سيمې په مکمل ډول تړلې او د ژوند هرډول تعليمي، تجارتي، صحي فعاليت ورکې په ټپه دريدلی دی.

تر دې چې د جرګې تر پرانيستنې يوه ورځ وړاندې د جرګې ساحې ته له نيږدې سيمې څخه يو نوی زيږيدلی ماشوم د لارو د بنديز له وجې روغتون ته په ناوخته رسيدو سره تلف شو.

له بلې خوا د افغانستان د سوداګرۍ او صنايع خونې د جرګې د جوړيدو په ورځ رپوټ ورکړ چې د لويې جرګې له امله د کابل ښار ډېرې برخې تړل شوي چې له امله يې خصوصي سکتور ميليونونه ډالر زيان کړی دی.

د دې خونې وياند توفيق داوري رسنيو ته ويلي چې سوله مهمه موضوع ده، خو د اړتيا وړ توکو ته د خلکو د لاسرسي موضوع هم بايد په پام کې ونيول شي.

توفيق داوري ويلي چې د لويې جرګې د امنيت ساتلو له امله له ۲۰۰۰ ډېر بار وړونکې موټرد کابل په دروازو کې درول شوي دي، او ښار ته دننه کېدو اجازه نه ورکول کېږي.

په داخلي کچه د جرګې د افتتاح په مهال د جرګې په تالارکې په يوه زيات شمير امنيتي ځواکونه د خبري رسنيو په مخ کې وسله په لاس ګرځيدل.

د اشرف غني د پرانيستونکي وينا په مهال چې د جرګې کوم برخوال هغه ته د سولې په مخ کې د خنډ اچوونکي شخص خطاب وکړ سمدستي د همدې ګوته په ماشه وسله والو لخوا تهديد او په ټيلو ټمبو د جرګې له تالار څخه و ايستل شو.

همدا راز يوه ميرمن چې د جرګې د مشر- عبدالرسول سياف د خبرو په مهال يې د هغه پر خبرو د انتقاد غږ پورته کړ بالفور د همدې نارينه وسله والو لخوا لومړی تهديد او بيا د وسلې په زور د جرګې له تالاره اخراج کړای شوه.

د اشرف غني تر وينا وروسته د جرګې مشر- عبدالرسول سياف څلور تنه د جرګې د مرستيالانو په توګه اعلان کړل.

ياد څلور واړه کسان همدا اوس د ګډ حکومت په تشکيل کې برحاله چارواکي دي چې عبدالروف ابراهيمي د پارلمان د مشر، فضل هادي مسلميار د سناجرګې د مشر- حبيبه سرابي د سولې شورا د مرستيالي، او عبدالرؤف انعامي د پارلمان غړی په توګه دنده تر سره کوي.

د يادولو وړ ده چې پورتني دوه کسان ابراهيمي او مسلميار دواړه په تنظيمي لحاظ د عبدالرسول سياف اړوند

کسان او نوموړي ته د لويي جرگې د مشرۍ امتياز هم په دې منظور سپارل شوی چې د جرگې مرستيالي به د ده گوند ته سپارل کيږي.

خو د جرگې برخوالو همدا څلور واړه د سياف لخوا پيشنهاد کړي مرستيالان مسترد او په دې توگه سره د جرگې لومړۍ ورځ د جرگې د برخوالو ترمنځ په اختلاف او نزاع سره پايته ورسيده.

پورتنی تصوير فقط د جرگې د لومړۍ ورځې هغه پيښې دي چې رسنۍ يې په ثبتولو او انځورولو توانيدلي، دا چې د رسنيو له عدسيو پرته به هلته څه تيرشوي او د جرگې برخوال به تر کومې اندازې د خپل نظر او رأيې له ازادي څخه برخمن وي اندازه يې الله ته معلوميږي.

اوس خبره دا ده چې په دغه ډول له ارعاب، تهديد او اختلاف نه ډکې فضاء کې به د جرگې برخوال څومره وتوانيږي چې په افغانستان کې د سولې او ثبات په راوستلو رائه ورکړي؟!

دا چې د جرگې مسؤليتونه وار تر له مخې په مصلحتي ډول په دولت پلوه تنظيمي غړيو باندې ويشل شوي.

دا چې د برخوالو له لوري لومړۍ نيوکه په اختناق او اخراج استقباليږي.

دا چې د جرگې د جوړيدو ساحه په پنځه سوه ليري واټن کې د زغروالو وسائطو په وسيله محاصره کيږي.

دا چې د جرگې د امنيت په پلمه يوه اونۍ د کابل په ټول ښار کې ژوند فلج کيږي.

دا چې د جرگې له امله سلگونه زره متعلمين او محصلين له خپلو زدکړو محروميږي.

دا چې د جرگې د امنيت په خاطر د سودا گرو اوکسب گرو روزگار په ټپه ډريږي.

او دا چې...

ايا دا ډول جرگه به د کابليانو او په مجموع کې ځوريدلو افغانانو لپاره کوم د سولې پيغام له ځانه سره ولري؟

ځکه له لويه سره د جرگې مشر- په مصلحتي ډول د جرگې مشري ته رسيدلی او ټول گډونوال يې د غني د يوه فرمايش د منلو او عملي کولو لپاره ټيکه کړل شوي، لهذا دې جرگې ته د لويي مشورتي جرگې نوم ورکول د جرگې نوم ته سپکاوی دی، دا جرگه فقط د اشرف غني لويه اجرتي جرگه ده، نه د درنو افغانانو د سولې پيغام لرونکې مشورتي لويه جرگه.

## ابن کثير رحمه الله په " البداية والنهاية " کې ليکي چې

وزير ابن الفرات يوه ورځ خپل منشي راوغوښت او ترې ويې پوښتل

هلاک شې ! نيت مې درته ډير بد دی .. خو چې کله زه ستا دنيولو اراده وکړم نو خوب کې دې وينم چې ځان رانه په يوه دانه ډوډۍ خلاص کړې ..

يوځل مې خوب وليد چې رانيسم دې خو ته رانه ځان خلاصوې ... بيا مې خپل يو عسکر ته امر وکړ.. چې جنگ درسره وکړي او په زور دې ونيسو ..

خو چې کله به يې درباندې د غشي گذار وکړ نو ستا په لاس کې يوه ډوډۍ وه تا به زر هغه ډوډۍ هغه غشي ته ونيوله نو هغه غشي به په ډوډۍ ولگېد او ته به بچ شوې ..

ما ته ددې ډوډۍ خبره وکړه چې دا څه قيصه ده.؟

هغه منشي ورته وويل : زه چې کله وړوکی وم نو هره شپه به مې مور يوه ډوډۍ زما دبالخت لاندې کيښودله چې سهار به شو نو هغه به يې زما له لوري صدقه کړه ..

کله چې زما مور له دې فاني نړۍ وکوچيدله نو هغه کار ته ما ادامه ورکړه هر ماښام يوه ډوډۍ سر ته ږدم چې سهار شي د الله په لاکې يې صدقه کوم ..

نو وزير حيران شو او ورته ويې ويل

قسم په الله ! چې له دې نه به وروسته تا ته زما له لوري کوم اذيت او تکليف درونه رسيږي، نيت مې درته ښه شو او راته گران شوې ...

# لمر په دوو ګوتو نه پټیږي!



لیکوال: م. جمیل باور

د روان میلادي کال د اپریل په ۲۱مه نیټه د کابل اداري سترې محکمې د نوي ولسمشر ـ تر ټاکل کیدو پورې د اشرف غني د واک غځونې پرېکړه وکړه، چې د سیاسي ګوندونو، راروانو ولسمشریزو ټاکنو نوماندانو او حقوقي کار پوهانو له سخت غبرګون سره مخ شوه.

نژدې پنځه کاله وړاندې د افغان ملت د تېر ایستلو لپاره له شرمه ډکې د ولسمشرۍ ټاکنې ترسره شوې، چې د ټاکنو کمیسیون یې پایله کې د افغان ولس له ارادې او تصمیم پرته (اشرف غني) بریالی اعلان کړ؛ خو د جمعیت اسلامي په ټکټ ولاړ نوماند (ډاکټر عبدالله)، چې د استاد عطاء د ملیشو ملاتړ ورسره و، د کمیسیون پرېکړه ونه منله او د یو موازي حکومت د اعلانولو خبرداری یې ورکړ.

له څو اونیو ترنګلو حالاتو وروسته، د امریکا د هغه مهال د بهرنیو چارو وزیر جانکیري، د دې ستونزې د هوارې په موخه څو ځله کابل ته سفرونه وکړل، او د یوې معاملې په پایله کې یې د دواړو لورو تر منځ د هر راز قانون خلاف په مساوي ډول واک تقسیم کړ.

دا کرغېړنه پرېکړه د افغان ملت په تاریخ یو تور داغ و، چې په پایله کې یو مصلحتي، بې کفایته او ضعیف حکومت رامنځته شو، چې خله کابینه یې هم بشپړه نه کړای شوه او ان تر اوسه یې ډېر وزیران د سرپرستانو په توګه چارې مخ ته وړي.

د دواړو لوریو تر منځ د واک د تقسیم پر سر سیاسي جنجالونه اوس یوه عادي خبره ګرځېدلې ده. د وزیر ټاکل او ګوښه کول خو لیرې خبره ده، د هیواد په نامه ولسمشر دومره واک هم نه لري، چې یو والي او امنیه قوماندان وګماري او یا یې ګوښه کړي، چې څرګندې بېلګې یې د بلخ ولایت د پخواني والي عطاء محمد نور د ګوښه کیدو پرسر جنجال او د نوي امنیه قومندان عبدالرقیب مبارز ګمارل و، چې له شل ورځې دندې وروسته په وچ زور ننګرهار ته رابدل کړای شو.

امریکا سره د امنیتي تړون د لاسلیک پرسر د حامد کرزي له ناندریو وروسته امریکا غوښتل، چې په افغانستان کې د کرزي له حکومته څوچنده بې صلاحیته او کمزوری حکومت رامنځته کړي. او هماغسې یې وکړل. دومره بې کفایته حکومت چې دیو والي او امنیه قومندان د ګمارنې او ګوښه کولو واک نه لري، هغه به څه ډول د افغانستان له ملي ګټو او مفادو څخه دفاع وکړي؟!

د دې کمزوري حکومت په پنځه کلنه دوره کې افغانستان د یو بحران لورته ورتېل وهل شو، نژدې ۶۰ سلنه افغانان د ژوند له لومړیو اسانتیاوو بې برخې شول، افغانۍ خپل ارزښت له لاسه ورکړ، شتمنو خپلې پانګې له هیواد وایستلې، د کارموندنې فرصتونه راکم شول، نړۍ او د سیمې هیوادونو د خپلو ګټو په هدف په افغانستان کې خپلې لاسوهنې څو چنده کړې او حکومت د نړۍ والې او سیمه ایزې انزوا ښکار شو.

دې ټولو نیګړتیاوو سره سره بیا هم، بې واکه سترې محکمې د دې حکومت د وخت د تمدید ناقانونه او د افغانستان د ملي ګټو په خلاف پرېګړه وکړه. لمر په دوو ګوتو نه پټیږي! د حکومت ناکامي او شوي خیانتونه د سترې محکمې په پرېکړه او په یو څو نمایشي ـ هوایي دهلیزونو نه پټیږي.



# دکابل رژیم

## او په مخکې یې پراته چیلنجونه...!!

ویس أفغان

د کابل ناکامه، نا ولسي اداره له داسې ستونزو سره لاس او گریوان ده چې د ډېرو حل یې د کتونکو په اند ناشونی ښکاري، که له یوې خوا د مجاهدینو له لوري د سختو کاري بریدونو له امله له شدید نظامی فشار سره مخ ده، خو له بلې خوا یې داخلي او بهرني سیاسي مشکلات ورته لوی چلینج گرځیدلی دی.

له همدې ځایه ده چې اشرف غني او ټیم یې اوس هغه رواني ناروغ ته ورته دی چې پخپلو ناسنجیده پریکړو او بیځایه ځرگندونو، او د بې گناه ولسي خلکو په بې ځایه قتل عام سره نور هم ځان د هلاکت او انزوا کندې ته ورغورځوي.

په سیاسي او پوځي میدان کې نن سبا د طالبانو برتري، د کابل رژیم تقریباً له ښه فشار سره مخ کړی، همدا وجه ده چې هرځای په لسگونو او سلگونو عسکر له خپلو جنگي افسرانو سره یوځای مجاهدینو ته تسلیمېږي، وسلې او مهمات مجاهدینو ته سپاري. له همدې امله اوس هغوی ټول یو پر بل سره بې اعتماده شوي دي.

د نفوذي مجاهدینو تاکتیکي گذارونه د دغې بدنامي ادارې لپاره یو بل ستر چیلنج گرځیدلی.

د کابل په گاونډ میدان ښار کې د ملي امنیت لویه استخباراتي قرارگاه له منځه وړل، او بیا د شوراب پر افغان+امریکایي پوځي اډه، د مجاهدینو پیچلې گذار، بادغیس او فاریاب کې ځو خونړي تاکتیکي بریدونه چې په دا نږدې ځو کلونو کې بې ساری بلل شوي؛ او د رژیم د سلگونو ورزیده پرسونل د له منځه تللو سبب شوي؛ د گډ سري ادارې وارخطایي نوره هم سِوا کړه.

له بلې خوا د رژیم په کور دننه اختلافات دې سرحد ته رسیدلي چې د پُسه او لیوه په څېر، یو بل ته مخ په مخ پریوزي. د گډ سري رژیم مقابل اپوزیسیون چې د جنگسالارانو او د کرزي د سابقه مامورانو څخه مرکب دی؛ شپه او ورځ د اوسني رژیم د له منځه وړلو په لټه کې دي، اوس چې د گډ سري رژیم شپې ورځې د دوی د اصولو له مخې د گوتو په شمار دي؛ له خپلې محکمې یې د ځو نورو میاشتو د واک د غځولو سند ترلاسه کړی، او لا لگیا دی د خپل اقتدار لپاره د لویې جرگې د راغوښتلو کار ته یې لاس اچولی، چې د ټول اپوزیسیون له جدي غبرگون سره مخ شوی او ټولو ورسره په یوه خوله پریکون اعلان

کړي، حتی چې د رژیم نیم شریک ډبل عبدالله هم ورسره مخالفت اعلان کړی.

د ګلیم جمي ملیشو سرلاری او د غني مرستیال، دوستم چې د دوی باداران امریکایي یرغلګر یې هم بشري جنایتکار ګڼي او له ویزې ورکولو یی انکار کوي؛ او دا رنګه ملیشه ایی قومندان عطانور او داسي نور... د دوی اذنابهم، هغوی خو لا لـه وړاندي په کمین کې دي چې رژیم ته د پای ټکی کښیږدي، او په مقابل کې یې وخت په وخت اخطاري بیانیې صادروي.

بل پلو د ګوډاګي رژیم چارواکي چې د مجاهدینو په وړاندي یې د مقاومت روحیه له لاسه ورکړې؛ نه یې خپل بهرنـي باداران ورسره صادقانه مرسته کـوي او نـه یـې ټوپکسالاران رینښتیني ملګرتیا کوي؛ اوس یې پر ولس مخ را اړولی، د ړندو بمباریو او شپنیو چاپو یوه وحشیانه لړۍ یې ورباندي را پیل کړي چې روزانه د هیواد په کلیو و بانډو کې په لسګونو بې ګناه کسان په وحشیانه ډول په شهادت رسوي، کلي او کورونه یې ورانوي، بازارونه او دوکانونه تخریبوي او د خلکو مالونـه د بـې بندوباره ملیشو په لاس لوټوي، دغه ناعاقب اندیشه جاهل ګوډاګیان د جنګ د ګټلو لپاره بس فقط همدا یوه طریقه پیژني چې پر بې دفاع ولس وحشیانه عملیات ترسره کړي، ولي له پایلو یې خبر نه دي چې په ظاهره د دې بې وسه ولس قتل عام به د دوی لپاره څومره بد عواقب ولري.

مجاهدین چې د ناټو او امریکا غوندي زبرځواکونو زور اوبه کولای شي، نو د یو ګوډاګي رژیم ملیشې به یې په وړاندي ترڅومره پوري مقاومت وکړای شي؟!

بلخوا د کابل رژیم د ګاونډیو هیوادونو باور دومره پرځان بایللی چې حتی یو ګاونډی یې هم هغوی ته د نظام په سترګه نه ګوري، بلکي د افغانستان په اړه د دغو ټولو ګاونډیانو سیاسي اړیکي له طالب سره وي.

امریکایان چې د دغي ګډسري اداري اصلي موجدین دي؛ د دوی عدم او وجود دواړه په هغوی پوري تړلي دي؛ هغوی هم اوس تر پوزي څیني راغلي؛ د هر ډول تړونونو او غلامیو سره سره امریکایان د دوی هیڅ فریاد نه اوري؛ حتی چې له طالبانو سره د مذاکراتو له جریانه یې هم نه خبروي، د حمدالله محب غوندي لوړ پوړي چارواکي یې تحریموي.

د امریکا معتبري رسنۍ د پنټاګان، وایټ هاوس، کانګرس او نورو ادارو د ماموراتو له خولي روزانه داسي راپورونه ورکوي چې د کابل له اوسنۍ اداري څخه په مطلق ډول زړه توري دي او دا یوه لویه تیروتنه بولي چې داسي یوه ناکامه اداره یې د ډېرو بیځایه مصارفو او بی هدفه قربانیو په بدل کې رامنځ ته کړه.

دا او دې ته ورته نور ډېر چیلنجونه دي چې د کابل بلواکه او بې کفایته اداره ورسره لاس او ګریوان ده، تاسو فکر وکړئ: کله چې یو رژیم د ولس له ملاتړه داسي محروم شي چې بالآخره د ولس په عام وژنه لاس پوري کړي، او کله چې په نظام دننه کې ټول احزاب او اشخاص ورسره په ښکر شي، کله چې د رژیم موجدین راغلي یرغلګر د هیواد په سطح مخ د طالب پرخوا واړوي او لویې پریکړې له هغوی سره مطرح کوي د رژیم چارواکي خبروي هم نه، او کله چې ګاونډیان دغه رژیم ته د نه څه په سترګه ګوري، رسمي اړیکي له طالب سره نیسي؛ او بالآخره کله چې رژیم داسي د مخمصې یو حالت ته ورسیږي چې د لیوني سپي غوندي پرخپل ولس مخ را واړوي شپه او ورځ یې بمباروي، په وحشیانه ډول یې تباهي ته ملا وتړي؛ د دنیا ټولي بشري ټولني یې بشري جنایات او وحشیانه کړني د سر په سترګوویني، او هغه ثبتوي، پر ټولنیزو رسنیو د دوی له وحشیانه کړنو پرته بل څه نه ترسترګو کیږي؛ نو تاسو فکر وکړئ چې آیا دا نظام به ترکومه وخته دوام ولرلای شي؟

هیڅ لیري نه ده چې په ډېرنږدي راتلونکي کې به د کمونیست رژیم د وروستي وارث ګوډاګي نجیب له انجام سره دوی هم مخکي شي. ان شاءالله

وماذلک علی الله بعزیز

# له زندانیانو سره

## نا انساني چلند

میوند سادات

دې وروستیو کې دملګرو ملتونو استازي دفتر (یوناما) هم تائید کړه چې دیرغلګرو او کابل رژیم په زندانونو کې له اسیرانو سره ناوړه چلند ترسره کیږي. یوناما زیاته کړې چې وضعیت د پخوا په پرتله څه سم شوی، خو لا هم بندیان له خپلو حقه حقونو بې برخې دي.

یوناما معمولا داشغالګرو او کابل حکومت پر جنایتونو او له اسیرانو سره پر ناانساني چلند سترګې پټوي، خو داچې په وروستي راپور کې یې پر څه واقعیت هم اعتراف کړی، داهم نسبتا ښه پرمختګ دی. په واقعیت کې دیرغلګرو او کابل اداري په زندانونو کې کاملا غیر انساني چلند جاري دی او همدې وحشت او ظلم اوس د یو قانون بڼه غوره کړې ده.

څه موده وړاندې د روښتیا دخار اداري هم په خپل راپور کې په ډاګه کړه چې دافغانستان په زندانونو کې غیر انساني چلند روان دی، په راپور کې ذکر شوي چې دې وروستیو کې د زندانیانو سره ناوړ ه او غیر انساني چلند اوج ته رسیدلی، بندیان لومړنیو منل شوو حقونو ته هم لاس رسی نه لري.

دخار اداري د بېلګې په توګه د څو خي پله، میدان وردګ او بغلان ولایتونو د لویو محبسونو وضعیت ته په اشاره ویلي چې: په یادووشوو زندانونو کې اسیران صحي اوبو، خوراک، درملو او نورو اړینو موادو او توکو ته لازم لاس رسی نه لري، ډیری بندیان چې د بند ټاکل شوې موده یې پوره کړې، لاهم په زندانونو کې بې برخلیکه پراته دي. بله جدي ستونزه داده چې په دې محبسونو کې د ظرفیت دوه برابره اسیران ساتل کیږي او ودانۍ په داسي غیرمعیاري ډول جوړې شوي چې هره شېبه یې دنړیدو او پکې داور لګیدو ویره شته، په لویه کې زندانونه د بشري حقونو د پایمالولو په مرکزونو بدل شوي دي.

د یرغلګرو او کابل رژیم په ټولو زندانونو کې غیر انساني چلند جاري دی، په تېره له سیاسي اسیرانو سره د جینوا دکنوانسیون او نورو بشري میثاقونو تخلف اوج ته رسیدلی، داسي اسیران شته چې یوه لسیزه یې زندان کې تېره کړې، خو تراوسه داسي څه نه دي پرې ثابت شوي چې مجرم وبلل شي، زیاتره بندیان له شواهدو پرته یوازي د شک اوتور له مخي نیول شوي او په کلونو- کلونو د زندان په تورو تیارو کې ساتل شوي دي، له کلونو حبس وروسته چې هم پرې لګول شوي تورونه نه دی ثابت شوی بیا هم د زندان دتورو تمبو شاته ساتل شوی دي.

بله لویه ستونزه داده چې په زندانونو کې هم دکابل اداري د نورو اورګانونو په څېر اداري فساد خورا لوړې کچې ته رسیدلی، د قاضیانو، څارنوالانو او وکیلانو یوه لویه مافیا فعاله ده، ښکاره قاتلان، غله او د بشري حقونو ستر ناقضین د پیسو په بدل کې خوشي کوي، مګر مظلوم او بې وسه بندیان په کلونو حبس محکوموي.

سیاسي زندانیانو ته ډول ډول شکنجې او رواني څور ورکول کیږي، د قران کریم تلاوت او ترجمې، مطالعې او تدریس ته نه پرې ښودل کیږي، ددوی په حضور کې د مقدساتو سپکاوی ترسره کیږي او په مختلفو بڼو د جسماني او رواني څور سره مخامخ کیږي.

د بشري حقونو ټولنې او اداري باید خپل مسؤلیت اداء کړي، داشغالګرو اواجیر رژیم په زندانونو کې غیر انساني چال چلند وغندي او دمخنیوي په موخه یې لاس په کار شي.

## بايد واضحه شي چې

# اشرف غني افغان دی که امريکايي؟

زخمي افغان

اشرف غنـي څـه مـوده وړانـدې پـه ارگ کـې د ښـځو د نړيوالې ورځې په مناسبت رابلل شوې غونډې ته پـه وينـا کـې ووېل چې د طالبانو او پاکستان تر منځ روابط بايد واضح شي. اشرف غني ښه خبره کړې ده، د هرې ډلې او سازمان لپاره له بيلابيلـو جهتونـو سره د اړيکـو شـفافيت د هغـې ډلـې پـه اړه شکونه له منځه وړي او د گمان فضا په يقين بدلوي.

خو دلته خبره دا ده چې اشرف غني هم بايد لـه امريکـا سره د خپـل تـړاو وضـاحت وکـړي، پـه دې معنـی چـې آيـا نوموړی افغان دی او که امريکـايي؟ او کـه لـه دواړو هويتونـو جوړ مرکب امتزاجي؟؟

موږ خو چې د اشرف غني ژوندليک لوستی نو رامعلومـه شوې چې اشرف غني د خپل ٦٩ کلن ژونـد زيـاتره وخـت پـه امريکا کې تېر کړی، نوموړی په افغانستان کې زيږېـدلی، خـو لا ماشوم و چې د (AFS) پروگرام په لړ کې امريکا تـه لاړ او د ليسې د مرحلې ځينې زده کړې يې په امريکا کې تـرسره کـړه، وروسته يې چـې کابـل پوهنتـون کـې د لسانس دورې داخلـه واخيسته نو ايله شپږ مياشتې يـې کابـل پوهنتـون کـې درس ووايه، د لسانس سند يې په بيروت کې له امريکـايي پوهنتـون څخه واخيست. اشرف غني د بکلوريـا او لسـانس مراحلـو پـه شان د زده کړو پاته مراحل هم د امريکا په مريدی کې بشـپړ کړل، د ماستری سند يې د کولمبيـا لـه پوهنتونـه پـه نړيوالـو اړيکو او دکتورا يې هم په همـدې پوهنتـون کـې د وگړپـوهنې په رشته کې واخيسته.

اشرف غني پاته عمر نږدې ټول په امريکا کې تېر کـړی، له يوې امريکايي ــ لبنانۍ عيسوي ښځې سره يـې واده کـړی، د امريکا تابعيت يې اخيستی، وروسته يې له همدې اعتبار نه په گټه اخيسـتنه د امريکـا پـه ډېـرو معتبرو ادارو او نړيـوال بانک کې مهم وظائف سرته رسولي دي.

نوموړی يوازې هغه وخـت پـه افغانسـتان کـې وپيژنـدل شو، چې امريکايانو په افغانستان يريد وکړ او ورسره يې خپل د اشرف غني په شان دوه تابعيته نيمـه امريکايـان هـم لـه ځـان سره راوستل. اشرف غني د ماضي په لحاظ تـر افغانسـتان پـه امريکا کې ډېـر شـهرت او روابـط لـري. د نومـوړي کـورنۍ او اولادونه سل فيصده امريکايـان دي. خپلـه اشرف غنـي هـم د پښتو په نسبت انگريزي روانه وايي، نوموړی چې پښتو خبرې کوي نو مسلسلې غلطۍ کوي، خو په انگليسي د بلبل غونـدې غړيږي. د اشرف غني پښتو املاء او انشاء نه ده زده نـو ځکـه يې ځوک پښتو ليکنه نه شي ثابتولی، د نومـوړي يـو کتـاب (د عادلانه نظام لار) هم د نوموړي کمپايني ملگرو ورته وليکـه او چاپ کړ. خو اشرف غني په انگريزي ډېرې مقالې نشر کـړې او حتی کتابونه يې ليکلي دي.

اشرف غني د افغانستان له مذهبي دودونـو سره دومـره نابلده دی، چې په دعاء کې لاسونه غـوړو تـه وړي، لـه رکـوع

مخکې سجدې ته منډې وهي او نورې يې هم ډيرې نـادودې کړې دي. نوموړی امريکايانو ته دومره منلی دی، چې د ۲۰۰۹ م کـال پـه ټـاکنو کـې د امريکـا خـاص اسـتازی هـالبروک د



نوموړي د بريا لپاره بربنډه لابي کولـه او د نومـوړي ولسمشر- کيدل يې د امريکا ستراتيژيک هدف ګڼه.

که له لـوړو ټولـو شـواهدو سره سره اشرف غنـي بيـا هـم امريکايي نه وي، نو بيا خو بايد چې اوباما او ملانيا ټرامپ هـم امريکايان ونه بلل شي. د امريکـا د حکومـت ډيـرى لـوړ رتبـه چارواکي د اشرف غني غونډې د نـورو هيوادونـو دي خـو پـه امريکا کې د زده کـړو او عمـر تيرولـو وروسـته اوس تـر خپلـو اصلي هيوادونو امريکا ته ډيره ژمنتيا لري.

د اشرف غني په شـان د امريکـا د بهرنيـو چـارو پخـواني وزير هنری کسنجر اصلا د المان و، د کلنټن د وخـت خارجـه وزير ماډلين البرايټ اصلا د چکسلواکيا وه، د جيمي کارټر په وخت د سپيني ماڼۍ سلاکار بريژنسکي اصلا د پولنـډ و دغـه راز د امريکا ګڼ نور لوړپوړي چارواکي هم لـه نـورو هيوادونـو سره تړاو لري چې يوه ښکاره بيلګه يې زلمی خليلـزاد دی چـې اصلا د لغمان اوسيدونکی افغان خـو اوس پـه امريکا کـې تـر لوړو مناصبو رسيدلی دی.

له دې څخه ثـابتيږي چـې يـوازې د نسـب رشـته يـا پـه نــژادي، قــومي لحــاظ تــر افغانستان پورې تړون د اشرف غني د افغانيـت دليـل نـه شي کيدلای. بلکـې اصلي خـبره د فکـري تـړاو، وفـادارۍ او ګټـو ته د تعهد ده. که مـوږ وګـورو اشرف غنـي د افغانسـتان پـه نسبت د امريکـا ګټـو تـه ډيـر تعهـد لـري. د افغانـانو پـه نسبت يـې لـه امريکايـانو سره خواخـوږي زياتـه ده. د دې خبرې ثبـوت دا دی چـې هـره ورځ زمـوږ اولـس پـه ډيـره بـې دردۍ وژني، بمبارونه، چاپې او وحشـتونه تـرسره کـوي. هـره ورځ د رسنيو مخ د وحشت انځورونو په سر اخيسـتی و. ټـول افغان اولس په ماتم کې ډوب وي خو د اشرف غني عاطفه نـه راويښـيږي. تـر اوسـه يـې د کـوم ولسيـ قتـل عـام پـه اړه نـه بخښنه غوښتې او نه يې هم غمشريکي ښکاره کـړې ده. خـو که په امريکا کې په کـوم نايټ کلـب کـې د يـو شرابي لخـوا ډزې وشي او يا په افغانستان کې کوم امريکـايي عسکر ووژل شي. بيا تر ټولو مخکې وربانـدې اشرف غنـي اوښکې تويـوي، کورنۍ ته يې تسليت وايي او درګرده د غمشريکۍ پيغامونـه مخابره کوي.

دې حقائقو ته په پام سره اشرف غني ته په کار دي چې د نورو د افغانيت په اړه د پوښتنې مطرح کولـو پـه ځـای اول خپل افغانيت ثابت کړي. ځکه ټول علائم دا ثابتوي چې دغـه بې رحمه ګوډاګۍ يوازې په نـوم او نسـب افغـان دی. نـور د فکر، نظريې، تعهد او وفادارۍ له اړخه حتی تـر امريکايـانو لا امريکايي دی.

معین احمد (معین)

# ایا د ولسي افغانانو خلاف به امریکایي وحشت د جهادي فعالیتونو مخه ډب کړای شي؟!

د تیر میلادي کال له اګست میاشتې څخه راهیسې چې کله د طالبانو او امریکایي استازي زلمي خلیلزاد ترمنځ مخامخ خبري پیل شوې ورسره جوخت د ولسي افغانانو خلاف امریکایي بمباري او شپني عملیات هم زیات شوي دي.

د دغو عملیاتو ډېر ترکیز پر ننګرهار، هلمند، خوست، لوګر میدان وردګ، اوغزني ولایتونو باندې ډیر زیات دی.

په تیرو همدغو نهو میاشتو کې تقریبا هیڅ داسې ورځ نه ده تیره شوې چې امریکایي یرغلګرو او د هغوی داخلي ملاتړو دي په یادو ولایتونو کې افغان وژنه او وحشت نه وي تر سره کړي.

یاد وحشت په داسې ډول تر سره کوي چې نه بهرني یرغلګر او نه هم د هغوی دا خلي ملاتړي د دوي په ړندو بمباریو او شپنیو عملیاتو کې د وژل شویو ولسي وګړو په مرګ ژوبله باندې ځان خبروي.

سره له دي چې د دوئ تر هر برید وروسته په هدف شوې سیمي کې عیني شاهدان او سیمه ییز خلګ په بریدونو کې د وژل شویو ولسي قربانیانو چې په هغو کې زیاتره ماشومان، سپینږیري او تورسرې شاملې وي، د هغوی جنازي د رسنیو مخې ته راباسي او ډیري خپلونه تلویزوني شبکې د همدې قربانیانو د جسدونو د عکاسي ژوندۍ صحنې خپروي، خو بیاهم نه په اصطلاح د سولې مدعي امریکایان، نه د بشري حقونو مدافعې ټولنې او نه بل څوک په دغه ډول وژنو غبرګون ښیي.

### امریکایان ولي دا وحشت تر سره کوي؟

سره له دي چې له یوې خوا امریکایي یرغلګر د خپلو تبلیغاتي وسائلو له لاري له طالبانو سره د سوله ییزو مذاکراتو خبرې کوي خو د هغو ترڅنګ بیا د مظلومو افغانانو خلاف د وحشت دغه څپه دغسې تونده ساتي.

امریکایي یرغلګر چې د ولسي- افغانانو خلاف خپل دغه ظالمانه وحشت هرډول توجیه کوي هغه د دوي په تعقل او ضمیر پوري اړه لري.

خو هغه څه چې په واقعي ډول عام افغان ولس ته په اثبات رسیدلې خبره ده هغه دا چې امریکایي اشغالګر غواړي د دغه وحشت په تر سره کولو سره مجاهدین تر فشار لاندې ونیسي او پر هغوی باندې د مذاکراتو پر میز باندې هغه څه ومني چې د دوئ مرضي وي.

### د امریکایانو ناسنجدیده فکر

خو امریکایي یرغلګر او د هغوی احمق مشاورین باید دا خبره درک کړي چې افغانان که فشار ته تسلیمیدلای نو باید ستاسي تیر ۱۸ کلن وحشت ته تسلیم شوی وای چې له بمباریو



نیولې تر شپنیو عملیاتو، زنـدانونو او نـورو مشـکلاتو پـورې مـو ټول د دوی خلاف بیدریغه وکارول.

خو د افغان ولس خلاف دغه امریکایي ظالمانـه وحشـت د دې پـه ځـای چې افغانـان کمـزوري او مقاومـت یـې لـه منځـه ولاړشي لا یې د هغوی خلاف په عـزم، او جهـادي فعالیـت کـې قوت راغلی او د هغوی خـلاف یـې د مقاومـت روحیـه پیـاوړې شوې ده.

اوس چې امریکایانو د مذاکراتو لـه تـر سره کولـو سره سره په پوځي ډګر کې د افغانانو خلاف پوځي وحشت تُوند کړی دی دا کار لا افغانانو ته د امریکایي اشغال په مقابـل کـې د مقاومـت انګیزه ورکوي.

څکـه نـن کـه د یـوه کلیـوال افغـان یـو زوی پـه امریکـایي بمباري او یا هم شپنیوعملیاتو کې په مظلومانـه ډول وژل کیـږي د هغه په مقابل کې د هغه کلي ټول ځوانان را پـاڅیږي او پـه زړه کې له امریکایانو څخه د انتقام روحیه تحریک کیږي.

همدا ټول ځوانـان لـه امریکـایي یرغلګـرو او د هغـوی لـه بې ننګه ملاتړو څخه د غچ اخیستې په غرض د مقاومت لیکـو تـه ځـي او هلته د خپلو مجاهدینو ورونو ترڅنګ دریږي چـې پـه دې سره د جهاد او مقاومت سنګرونه نور هم پیاوړي کیږي.

لهذا امریکایان او د هغـوی اجـرتي مـدافعین پـه دې پـوه شي چې د افغان مسلمان ولس پر خـلاف بـه سـتاسي همـدا پیـل کـړی وحشت هم داسې ناکام کیږي لکه په تیرو اتلسـو کلونـو کـې چـې ستاسي ټول وحشي۔ جنرالان د افغانـانو خـلاف مقـابلې کـې نامـه شوې او په تیټو سترګو له افغانستان وتلي دي.

ان شاء الله نور هغه وخت لیرې نه دی چې د اسلامي امـارت فاتح مجاهدین به د اشغالګرو خلاف د فتحې وروستي سرمنـزل تـه رسیږي او بیا به له هغو تولـو اجـرتي قـاتلینو سره چـې د امریکـایي مصالحو لپاره یې افغانان ځورولي د دغه وحشت محاسبه کـوي... باذن الله..

وسیعلم الذین ظلموا ای منقلب سینقلبون





# ترامپ آماده‌ء ترک متحدانش در افغانستان است

ن پیمان

به اعتقاد هنری کیسینجر، باید «فاصله مناسبی» میان خروج امریکا از ویتنام در سال ۱۹۷۵ و پیروزی کمونیست‌ها وجود داشته باشد؛ سایگون اندکی پس از این که آخرین هلی‌کوپتر امریکا این شهر را ترک کرد، سقوط کرد. حالا فرستاده دونالد ترامپ در مذاکرات صلح افغانستان نیز در خصوص کابل تقریباً بر همین سناریو تمرکز دارد.

نیوز اینترنشنال در گزارشی با موضوع نقش امریکا در مذاکرات صلح افغانستان و پیامدهای دستیابی به توافقی با طالبان در مذاکراتی بدون حضور دولت افغانستان نوشته، است: به نظر می‌رسد امریکا با شرکت ندادن دولت افغانستان در مذاکرات صلح می‌خواهد تنها از شر مسأله افغانستان خلاص شود. این کار می‌تواند خلیل‌زاد را به نسخه ضعیف‌تر هنری کیسینجر در خصوص ویتنام تبدیل کند.

با این که ترامپ با این کار به تعهد خود برای خروج از "جنگ‌های بی‌پایان" امریکا عمل می‌کند، این مساله دستاوردی قابل توجه نیست. دست‌کم از سال ۲۰۰٤ و پس از اشغال عراق از سوی امریکا، تمایل امریکایی‌ها به عدم شرکت در جنگ‌های خارجی به شدت افزایش یافته است. برآوردن چنین تمایلی اما به میزانی از خونسردی نیاز دارد که رؤسای جمهور انگشت‌شماری از آن برخوردارند. این کار به معنی ترک دوستانتان هنگام رویارویی با دشمن است.

تمایل بر این است که تلاش کنید حکومت کشور مورد نظر را پیش از ترک آن تحکیم و تقویت کنید. باراک اوباما تلاش کرد با افزودن ۱۰۰ هزار سرباز به نیروهای افغانستان همین کار را انجام دهد. جرج بوش پسر نیز همین کار را در عراق کرد اما هر دوی آن‌ها شکست خوردند.

چنین مسائل اخلاقی اما حال ترامپ را بد نمی‌کند. او همان‌طور که در حال آمادگی برای رها کردن کردهای سوریه است تا سرنوشت آن‌ها را در دستان ترکیه قرار دهد، تمایل دارد در قربانی کردن کابل برای طالبان نیز خطر کند. مشکل منتقدان ترامپ این است که ایده بهتری در این زمینه ندارند.

با هزینه‌ای یک تریلیون دالری، از دست رفتن جان بیش از ۲٤۰۰ امریکایی و پس از ۱۸ سال تلاش، افغانستان در قیاس با زمانی که امریکا در سال ۲۰۰۱ دولت طالبان را برکنار کرد، ثبات بیشتری ندارد و ادامه این رویه دور ریختن پول است.

ماجرای ویتنام نیز نسخه‌ای کامل‌تر از همین داستان است. در آن زمان مثل حالا، امریکا متحد خود را در مذاکرات شرکت نداد. کیسینجر آن را «صلح همراه با غرور و افتخار» نامید اما دولت ویتنام جنوبی مساله را این طور نمی‌دید.

خلیل‌زاد تعهد امریکا را برای ایجاد روندی «به رهبری افغانستان و متعلق به این کشور» رها کرده است. این

مـذاکرات تمامـاً بـین او و طالبـان پـیش می‌رود؛ طالبـانی کـه گفت‌وگو با «دولت دست‌نشانده» در کابل را رد می‌کنند.

در داسـتان ویتنـام نـیز همچـون مـاجرای افغانسـتان، شبه‌نظامیان کنترل حومه شهر را در دست داشتند و امریکـا نیز در هر دو مورد حملات هوایی را افزایش داد تا نفوذ خـود را گسترش دهد. هدف اصلی واشنگتن هم در هر دو مورد روشـن بود؛ خروج با شتابی مناسب.

ترامپ می‌خواهد پیش از انتخابات سال آینده مـیلادی از افغانستان خارج شود. توافق پیشنهادی صلح نـیز سـاده اسـت؛ طالبان متعهد خواهد شد که هیچ حمله به اصطلاح تروریسـتی در امریکـــا را پشـــتیبانی نکنـــد و امریکـــا در ازای آن سربازانش را به خانه بازمی‌گرداند.

آیا تاریخ ترامپ را برای امضای توافقی با طالبان سرزنـش خواهد کرد؟ می‌توان گفـت مطمئنـاً. ایـن امـا وظیفـه منتقـدان ترامپ است که طرح متفاوتی را مطرح کننـد. در حـال حـاضر گزینه‌های موجود شامل طرح دموکرات‌هـا اسـت کـه خواسـتار خروج هستند و طرح جمهوری‌خواهـان کـه می‌خواهنـد جـنگی پیروزی‌ناپذیر را پیروز شوند. آنان می‌گویند تعهـد طالبـان ارزش کاغذی که قرارداد روی آن نوشته شـود را هـم نخواهـد داشـت. درست می‌گویند اما القاعده و داعش در کشورهای بسیاری کـه امریکا آن‌ها را اشغال نکرده، فعالیـت می‌کننـد. (پـس تعهـد دادن طالبان در کشوری که امریکا در آن حضور دارد، امـری مثبت است و می‌توان این مسأله را از این جنبه نیز بررسی کرد.)

بهای واقعی این توافق صلح متوجه جایگاه جهانی امریکا خواهد بود. واشنگتن میزبان مراسم هفتادمین سالگرد تشکیل ناتو است. کشورهای اروپایی عضو ناتو طی چند ساعت پس از حملات ۱۱ سپتمبر ماده دفاع مشترک ناتو را مطرح کـرده و بـه کمک امریکا آمدند. بیش از ۱۰۰۰ نیروی غیرامریکایی ناتو در افغانستان جان باخته‌اند. با این حال خلیل‌زاد اروپایی‌هـا را در مذاکرات با طالبان شریک نکرده است. ایـن اقـدام سرزنـش متحـدان را بـه دنبـال دارد و تخریـب وجهـه امریکـا در خاورمیانه را به دنبال خواهـد داشـت و همچنـین بـر جـایگاه امریکا در نظر هند نیز تأثیرگذار خواهد بود؛ چـرا کـه هنـد طالبان را یکی از ابزارهای پاکستان می‌دانـد. چـین نـیز ایـن مساله را در نظر خواهد گرفت و از آن استفاده خواهد کرد.

امریکا افراد برتر یک نسل را خرج برقـراری ثبـات در کشوری با ۳۵ میلیون نفـر جمعیـت کـرده و شکسـت خـورده است. امریکا ظرفیت خـود بـرای ترسـاندن دشـمنانش را از دست داده است.

با این حال خلیل‌زاد کاری را انجام می‌دهد که امریکا از او می‌خواهد. ممکن است او حتی دلایلی برای علاقه‌مندی بـه ماجرای مشابه ویتنام داشته باشد. روش پایان دادن بـه جنـگ ویتنام جایزه صلح نوبل را برای کیسینجر به همراه داشت ولی به نظر می‌رسد نه خلیل‌زاد و نه ترامپ بهای بازگشـت طالبـان را پرداخت نمی‌کنند

## هیڅکله دا (۷) دردوونکې خبرې چاته مه کوه

-:۱هیڅکله له یتیم نه دا پوښتنه مه کوه چې مور یا پلار دې کله مړه شوي، یا ولې مړه شوي؟

-:۲هیڅکله له چا دا پوښتنه مه کوئ چې زوی یا لور دې کله یا ولی مړه شول؟

-:۳هیڅکله له بې روزګاره شخص نه د خلکو په مینځ کې پوښتنه مه کوه چې ولې ځه کاروبار نه لرې؟

-:٤هیڅکله له شنډې ښځې یا شنډ سړی نه دا پوښتنه مه کوه چې ماشومان دې ولې نشته؟

-:۵هیڅکله له هغه چا نه چې پر مخ یې څه داغ وي پوښتنه مه کوه چې دا مخ دې ولې داسې دی؟ ځکه چې مخ د عزت او کرامت ځای دی او هیڅوک نه غواړي عزت یې تر پښو لاندې شي.

-:٦هیڅکله له میلمه نه مه پوښته چې ډوډی یا چای راوړم؟ بلکې له پوښتنې پرته کـه د ډوډۍ وخت وي ډوډۍ راوړه او که د چایو وخت وي چای ورته راوړه.

-:۷هیڅکله د خلکو د خندونې لپاره پر خپل ملګري ملنډې مه وهه ځکه چې دا ډیر دردوونکی وي

# ښايي په افغانستان کې هم

## د ویتنام د بې حرمته تېښتي داستان یو ځل بیا تکرار سي!




ف ـ فقیر

له افغانستانه د امریکایي عسکرو خروج د خارجي پالیسۍ امریکایي ماهران دېته مجبوره کړي دي چي د ویتنام د جنګ د بې عزته او شرمناکه اختتام پـه اړه یـو کـرت بیـا فکرونـه او سـوچونه کړي. په ۱۹۷۵ کي، د ویتنـام د جنګ د ختـم آخـري صـحنو د امریکا د دفاع وزارت په مامورینو کي دا ډار راولاړ کړی دئ چـي ښايي په افغانستان کي هم د ویتنام د بې حرمته تېښتي داستان یـو ځل بیا تکرار سي. هله امریکایي او د جنوبي ویتنام مـامورین پـه هیلکوپټرو پوري ځړېدل، له وهمه رپېدل، او له ویتنامه پـه تاختـه راووتل. په افغانستان کـي د امریکـا پخـوانی سـفیر رایـن کـارکر خبرداری ورکوي چي پـه افغانسـتان کـي بایـد د ویتنـام د شـاتګ «کانه» بیا تکرار نه سي. د خارجي پالیسي همدا متخصصین باور لري چي که چیري امریکا له افغانستانه په تېښته ووزي، د متحـده ایالاتو فوج به یو وار بیا د ویتنـام پـه «سینډروم» اختـه سي، او د امریکا اردو به د کلونو کلونو لپاره فلج کړي.

امریکایي پروفسور ښاغلی جورج هیرېنګ د اپریل پر ۱۵ د فارن افیرز په معتبره سیاسي مجله کي دا سوالونه مطرح کـوي: د افغانسـتان او ویتنـام د جنـګ د ختمولـو شـباهت څونـه دی؟ لـه افغانستانه د امریکایي عسکرو راوتل بـه د افغانـانو او امریکایـانو لپاره څه عواقب ولـري؟ او متحـده ایـالاتو د ویتنـام لـه جنګـه د عبرت کـوم درسـونه زده کـړي دي چـي پـه افغانسـتان کـي یـې وکاروي؟

پروفسور جورج هیرېنګ ادامه ور کـوي او لیکـي ویتنـام او افغانستان دواړه د امپراتوریـو پـه «هـدېرو» بانـدي شـهرت لـري. دواړه ملتونه د خارجي اشغالګرانو په مقابل کي سـخت مقاومـت کوي. په افغانستان او ویتنام کـي د امریکـا جنګ د یـو جهـاني جګړې یوه برخه ده. په ویتنام کي د ساړه جنګ هنګامه ګرمـه وه، او د افغانستان روان جنګ د جورج بوش «د تروریزم پر خـلاف د جګړې» یوه برخه ده. پـه دواړو ملکونـو کـي، بـومي جنګیـالیو د متحده ایالاتو سره د اوږده جنګ بند و بست کړی دی، او غواړي چي یو سوپرپاور حریف په اوږدوه جنګ کـي مـات کـړي. افغـان جنګیالیو یو امریکایي ژورنالیسټ ته ویلي ول، «دوی سـاعت تـه ګوري، خو موږ په کافي اندازه وخت لرو. »

لیکوال کاږي متحده ایالاتو او شمالي ویتنام په ۱۹۷۳ کـي د مستقیمو مذاکراتو په ترڅ کـي د سـولي مـوافقې تـه ورسـېدل. هغوی پدې مذاکراتو کـي د جنـوبي ویتنـام حکومـت بـای پـاس کـړی وو، مانـا پـه مـذاکراتو کـي یـې ګـډون نـه لاره. آلان پـه افغانسـتان کـي امریکـا او طالبـان خـبري سره کـوي، او د اشرف غني حکومت بهر په انتظار ولاړ دی. لکه په ویتنام کي، د امریکا دوسـت حکومـت د افغانسـتان کمـه خـاوره کنټرولـوي. د غنـي لیډرشیپ کمزوره دی، حکومت یې پـه سیاسـي انـارشي بانـدي اخته دی، او اداري فساد یې بېخ او بنیاد ور تباه کړی دی. لکه په ویتنام کي، د افغانستان اردو د امریکا پـه مـالي او نظـامي مرسـتو

باندي تکيه لري. لکه په ويتنام کي، د امريکا د راوتلو وخت حياتي اهميت لري. امريکا بايد يو داسي زماني چوکاټ برابر کړي چي له افغانستانه د امريکايي عسکرو د راوتلو او په کابل کي زموږ د دوست حکومت د سقوط تر منيځ څه وخت پرېږدي.

د دې ټولو مشابهتونو سره سره، دا دوه جنگونه سره متفاوت هم دي. د ويتنام د جنگ په اوج کي، متحده ايالاتو هلته قريب نيم ميلون عسکر لرل، د ويتنام په جنگ کي اته پنځوس زره امريکايي عسکر ووژل سول. خو د ويتنام په پرتله په افغانستان کي د امريکايي عسکر شمېر ډېر کم دی، او تر اوسه پوري صرف څلور زره عسکر وژل سوي دي. واقعا، زموږ دوښمنان هم د مقايسې وړ نه دي. شمالي ويتنام د جهان يوه ستره اردو لرله، او شوروي اتحاد او چين مرسته ورسره کوله. خو د افغان طالبانو شمېر ډېر کم دی، او يوازي يې هم دشک تربريده پاکستان ملاتړ کوي. هيڅ ستر طاقت د افغانستان په جنگ کي ښکېل نه دی چي د امريکا لپاره د دې جنگ قيمت جگ کړي او هم يې لا مغلق کړي.

د ويتنام د جنگ پر ضد دننه په امريکا پراخ مخالفت موجود وو. همدې داخلي مخالفت جمهوررييس نيکسن مجبوره کړ چي د ويتنام جنگ ژر تر ژره ختم کړي. خو د افغانستان د جنگ پر خلاف دننه په امريکا کي د خلگو شديد مخالفت نسته. د افغانستان د جنگ په خاطر پر امريکايانو باندي نوي ماليات نه دي وضع سوي. دننه په امريکا کي د جنگ پر ضد عام ولسي-اعتراضونه نه دي روان. امريکايي مطبوعات د افغانستان جنگ ته پراخ پوښښ نه دی ور کړی. خو د عامه افکارو سروې ښيي چي اکثريت امريکايان باور لري چي د افغان جنگ يو اشتباه ده، او امريکا بايد له افغانستانه ژر تر ژره راووزي.

جالبه دا ده چي د افغانستان د جنگ سره مخالفت د جمهوررييس ټرمپ مهمه مفکوره ده. ټرمپ غواړي چي د امريکا ابدي او قيمتي جنگونه ختم کړي. که څه هم په لومړی کال کي د ټرمپ نظامي سلاکارانو هغه تشويق کړ چي افغانستانه ته اضافه عسکر واستوي، خو د دفاع وزير او د ملي امنيت د شورا د سلاکار له برطرفه کولو راوروسته ټرمپ بيا خپل پخواني موقف ته ورگرځېد.

خو په ويتنام کي د امريکا شرمناکه ماتې د افغانستان پر شاتگ باندي اثر اچولی دی. د اکثرو امريکايانو هغه عکسونه او صحنې په ياد دي چي د جنوبي ويتنام حکومت سقوط وکړ، او امريکايان په تېښته راووتل. څرنگه چي امريکايان تل په نظامي برياوو باندي عادت کړی دی، د ويتنام غوندي خاطرې يې وجدان زهيروي. ايا له افغانستانه راوتل به د ويتنام په څېر وي؟ او د افغانانو او امريکايانو لپاره به ورته شان عواقب ولري؟

موږ پدې نه پوهېږو چي له افغانستانه د امريکايي عسکرو تر راوتلو وروسته به څه پېښ سي. ممکنه ده چي طالبان حاکم سي، او په ځينو ځايونو کي قومي جنگسالاران واکمن سي، مانا د ۲۰۰۱ څخه د پخوا په شان حالت بيا برقراره سي. د شمالي ويتنام غوندي ښايي طالبان هم خپله ايدلويوژي پر افغانستان باندي وتپي، او د پخوا په څېر خپل اسلامي دولت جوړ کړي.

البته د دوو تاريخي تجربو مقايسه کول خطرناکه وي، خو بيا هم د ويتنام د عبرت درسونه د افغانستان لپاره ضروري دي. د مثال په توگه، نيکسن ځان پدې غولوی چي د اقتصادي کومکونو ژمني او د بيا بمباريو تهديد به شمالي ويتنام دېته وهڅوي چي د امريکا تر وتلو راوروسته پر خپلو وعدو باندي وفا وکړي. خو په ويتنام کي د بيا مداخلې سره د کانگرس او امريکايانو مخالفت د نيکسن لاسونه ور وتړل. حتی که چيري د واټر گيټ رسوايي هم نه وای جوړه سوې، نيکسن د شمالي ويتنام د بري مخينوی نه سوای کولای. کله چي امريکا له افغانستانه راووزي، هلته به هم بيا چندان نفوذ و نه لري. د امريکايي عسکرو بيا استول کاملا ناممکن بريښي. د امريکا يو آپشن به دا وي چي هلته د مخالفينو اډې بمبار کړي او بس.

د ويتنام تجربه بايد موږ ته دا را زده کړي چي څرنگه د جنگ وروستی پړاو اداره کړو. موږ بايد له افغانستانه د يو منظم خروج لاري چاري ولټوو. که چيري موږ دا کار وکړو دا به د «افغانستان سيندروم» څه کمزوري او اوبلن کړي.

د ویتنام بل حیاتي درس دا دی چي باید موږ د خپل خروج په اړه د خپلو ملګرو سره مخکي له مخکي مشورې وکړو. موږ په ویتنام کي خپل ملګرو ته په داسي وخت کي خبر ورکړ چي موږ په راوتلو باندي پیل کړی وو. د نیکسن دې فیصلې زموږ ملګري سخت راخخه خوابدي کړل، او هغوی خپل عسکر تر موږ مخکي وایستل. ټرمپ باید همدا اشتباه تکرار نه کړي، که څه هم د امریکا د ملګرو سره د ټرمپ سابقه چندان د باور وړ نه ده. بل پلو، امریکا باید دېته چمتو واوسي چي هغه افغان مهاجرین قبول کړي کومو چي زموږ سره همکاري کړې ده.

څرنګه چي د افغانستان جنګ د امریکایانو له سترګو څخه نیهام دی، نو لهذا د افغانستان څخه راوتل به دننه په امریکا چندان عواقب و نه لري. ښایي د ټرمپ د نشنلیستي موقف سره ځیني ښخواني جمهوریپال مخالفت وکړي، مګر د امریکا د عامه افکارو سروې ښیي چي اکثره امریکایان د ټرمپ نشنلیستي دریځ غوره ګڼي، او غواړي چي دننه په امریکا کي پانګونه وسي.

په پای کي، د واشنګتن آپشنونه ښخواني او اشنا دي. واشنګتن کولای سي چي د کامل بري په هیله جنګ تشدید کړي. دا به جنګ او روان بن بست لا اوږد کړي. بلخوا، واشنګتن کولای سي چي دا ۱۸ کلن ناکامه جنګ ختم کړي، او خپل مصارف راکم کړي. انتخاب روښانه او څرګند دی. متحده ایالات باید د خپل اعتبار او پرستیج تشي خبري خوشي کړي، او له عقله کار واخلي. د افغانستان او ویتنام تر ټولو مهم د عبرت درس دا دئ چي د یوه بد جنګ ښه چاره ختمول دي.

## لا تقنطوا من رحمة الله

په جنګ احد کې وحشی د نبی صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تره حضرت حمزه ﷺ په دی عرض شهید کړی وو چه ده سره خپل مالک دا وعده کړی وه . که تا حمزه ﷺ قتل کړو نو تابه آزادومه . وحش د خپلی آزادي په لالچ کې حضرت حمزه ﷺ شهید کړو خو مالک ورسره وعده پوره نکړه ، دې په خپلو کړو پښمانه شو .

نو ده او دده بعضو ملګرو نبی صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خط راولیګلو چه ستاسو نه مونږ په مکه کښې اوردلی وو چه د الله تعالی نیکان بندګان د الله نه سوا د بل چا عبادت نه کوي او نه په ناحقه قتل کوي او نه زنا کوي او چاچه دا کارونه وکړل نو هغوی به جهنم ته داخلیوي د قیامت په ورځ به د دوی د پاره دوه چنده عذاب وي او دوی به په جهنم کښې همیشه وي او مونږ دا دری واړه ګناهونه کړی دي. نو دې پسی الله تعالی دا ایتونه رانازل کړل چه چا توبه وایستله او ایمان یې راوړ او عمل یې نیک کړو نو زه به د دوی ګناهونه په نیکو بدل کړم . (( الا من تاب و آمن وعمل عملا صالحا )) نو دا دواړه آیتونه یې هغوی ته ولیږل . چه هغوی دا آیتونه ولوستل دوباره یې خط راولیګو چه دا دواړه شرطونه ډیر ګران دي کیدای شي چه مونږ خو ایمان راوړو . خو نیک عمل ونکړای شو نو الله تعالی دا آیت نازل کړو چه الله تعالی مشرک نه بخښي او د شرک نه علاوه چه چا ته څه وغواړي بخشش کوي (( ان الله لا یغفر ان یشرک به و یغفر ما دون ذالک لمن یشاء)) او هغوی ته یې ولیګلو هغوی چه دا ایت ولوستلو نو دوباره یې خط را ولیګلو چه په دې کښې هم الله تعالی یو شرط لګولی دی چه هغه څوک به ښنم . څوک چه زما خوښ شي او کیدای شي چه مونږ د الله تعالی خوښ نه شو نو الله تعالی دا آیت نازل کړو (( قل یا عبادی الذین أسرفوا علی أنفهم لا تقنطو ا من رحمة الله ان الله یغفرمادون ذالک لمن یشاء )) اوهغوی ته یې ولیګلو . هغو چه دا آیت ولوستلو نو خط یې ولېګلو چه په دې کښې هم الله تعالی یو شرط لګولی دی چه مونږ د الله تعالی خوش نه شو نو الله تعالی دا آیت نازل کړو :

(( قل یا عبادی الذین اسرفو ا علی انفسهم لا تقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعا انه هو الغفور الرحیم))
یعنی ته زما بندګانو ته ووایه چه هغوی د ګناهونو په وجه په خپلو ځانونو ظلم کړی وي ، چه تاسو د الله د رحمت نه مه نا امیده کیږی ځکه چه الله تعالی ټول ګناهونه ښښي او الله تعالی ښښونکی او مهربانه دی چه کله یې ورته دا آیت و لیګلو نو هغوی ایمان راوړو او نبی صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلل نو نبی علیه السلام یې ایمان او اسلام قبول کړو.




# په کابل کې

## د غرب دروغجنه دیمکراسي...!!

موسی فرهاد

پر افغانستان د امریکا په مشرۍ د لویدیځوالو د یرغل لـه بنسټیزو اهدافو څخه یو دا ګڼل کېده چې ګویا په دغه هیواد کـې به دمکراتیک ارزښتونه پلي کوي، او د همدغه دمکراتیک مزي پـه مټ به افغانستان له لویدیځي پرمختللې دنیا سره وصلوي.

د دې مقصـد لپـاره، یـې د یوویشـتمې پیـړۍ د لـومړي کـال ۲۰۰۱م په وروستیو کې زموږ پر کمزوري او بې دفاع هیواد د کـروز میزائلو، بــ ۵۲ فاسفورس بمونو، شـینوک، ډرون، ایفــ ۱۶، ایفــ ۲۱ الوتکو، هاموي ټانګونو، پلان او پلان مهلکو جنګـي وسـایلو سره نـا انډوله برید پیل کړ، چې تر نـه هـم دوام لـري او پـوره اټلـس کالـه کېـږي چـې د افغانسـتان ځمکـه او فضـا د دوی لـه لاسـه د اور او باروتو سرو لمبو او تورو لوخړو پر سر اخیستي ده.

د بې شمېره معصومو انسانانو وینې یـې وبهـولې، د هلاکـو او چنګیز تـولې وحشي- کـړنې یـې انجـام کـړې، او لا هـم لګیـا دي یرغلګـر او د هغـوی ګوډاګیـان شـپه او ورځ د دې بیچـاره ولـس معصومې وینې پرته له کومې وقفې تویوي.

دا هرڅه چې دوی کوي او د هر هدف لپـاره چې یـې کـوي، هغه جدا مسئله، خو یو هدف یې دا وانمود کړی وو چـې ویـل یـې په کابل کې به د غرب دیمکـراسي پـلي کـېږي، د دوی پـه تعبیـر یعني دلته به ولسواکي وي، عـدالت بـه وي، دیکتـاتوري، ظلـم او فساد به نه وي، د خلکو په رایه به انتخاب او د هغې رایـې احـترام به وي، زورواکي، دوکه او بدماشي به نه وي.

مګر نن سبا چې غرب خصوصاً امریکا، په کابل کـې د کـوم فاسد رژیم پرسر لاس ایښی؛ له دې نه پـه ډاګـه څرګنـدیږي چـې لویدیځوال په خپلو خبرو کې مطلق دروغجـن وو او دي، هیڅکلـه نه غواړي چې په غرب کې پلي دمکراتیک اصول دې په کابل کـې هم وده وکړي، بلکې د افغانستان لپاره د هغوی دموکراسي بېلـه بنـه لري.

دلته چې انتخابات کېږي، پریکړه به یې بیا هـم د امریکـا د جانکیري په لاس کېـږي، مـلي وحـدت حکومـت بـه د دې لپـاره جوړیږي چې ملي مخالفت رامنځ ته کړي، ملي اردو، مـلي پـولیس به د ملت د قتل عـام لپـاره کـارول کېـږي، قضـاء او پارلمـان بـه د یرغلګـرو د جنایـاتو د توجیـه او مصـئونیت لپـاره اسـتعمالیږي، نړیوالې مرستې به د غربت زیاتولو، او د فسـاد، او رشـوت د کلچـر عامولو لپاره کېږي، میډیا به فقط د یرغلګرو او د هغـوی د ملاتـړو په حق کې د پروپاګند لپاره آزاده وي، نـور بـه تـر هـر ډول قـدغن لاندې وي، ولس به وژل کېږي، نوم به د طالب او القاعده وربانديې ښودل کېږي، د سولې په نوم جرګې بـه تنهـا د قـدرت غځولـو او د سـولې د مخنیـوي لپـاره پـه پیسـو پیـرلې کېـږي، د سـیاسي اپوزیسونو له مخالفت سره سره به د چارواکو پریکـړې امریکـا تـه هیڅ قابل اعتراض نه وي، د بشري جنایاتو راپور ورکوونکي او یـا آواز اوچتوونکي به د ترهګرو په نـوم یـادیږي، د هیـواد د سـاتونکو لخـوا د هیوادوالـو قتـل عـام او د هغـوی د ناموسـونو تـوهین بـه د آیساف په ملاتړ ترسره کېږي، د ښځو په نـوم حقـوق بـه یـوازې د غرب زده ډمو نظریات د ښځو حقوق بلل کېږي، او داسې نور... پـه سلهاوو نادودې دي چې د لویدیځ په دیمکراسۍ کې د هغوی لپاره جرم بلل کېږي، خو په کابل کـې دا هرڅـه د امریکـا پـه مشرۍ د لویدیځوالو یرغلګرو په سیوري کې جواز لري او دلته د امریکـا لـه برکته پر افغانانو هغسې- څېـري تپـل شـوي چـې نـه د هـیڅ ډول

دمکراتیک اصل پابند دي او نه پر کوم اسلامي او افغاني فرهنګ باندي باور لري.

له همدې ځایه ده چې په افغانستان کې نن سبا د غرب د همدې بې بندوباره دروغجن کلچر پلي کوونکې ټوله د افغانانو لپاره په یو ناسور بدله شوې ده.

څو میاشتې کم شل کاله کیږي چې د امریکا له لاسه د افغانانو ویني توئیږي، په داسې حال کې چې په خپل هیواد کې دا حالت د شلو ساعتونو لپاره نشي زغملی، خو پر افغانانو یې دا هرڅه لوریږي او په بدل کې ورته وایي چې موږ تاسو ته د لویدیځ دمکراسي را نقلوو، او هغه هم د ټولني د څو منحرفو، وژونکو، او بې بندوباره وګړو په مټ.

آیا دا هغه څه نه دي چې امریکا او نور لویدیځوال یې باید په اړه له سره فکر وکړي، او مسلمان امت ته د خپل بد نیت تاریخي څیره نوره هم رسوا نکړي، زه فکر کوم چې نور امریکا او د هغوی حلیفانو ته پکار ده چې په ناسمه پلمه او غلطه بنه د دمکراسی د راغځولو لپاره نور افغانان ونه ځوروي.

پکار ده چې نور دوی په دې اړه له سره غور وکړي، که د بشریت د احترام په خاطر نه وي، د خپلې دوه مخې څیرې د لا بربنډتیا څخه د ډډې کولو په خاطر دي نور د افغانستان له اشغاله او د افغان ولس له قتل عام څخه لاس واخلي او افغانان دې د خپلو څو نا اهله بچو په لاس مزید نور نه ځوروي. اوس لا هم وخت ډېر تېر نه دی. وخت شته چې امریکا او ملګري یې په کابل کې خپلې دروغجنې دمکراسی ته د پای ټکی کښیږدي.

# د انسان لپاره همدومره بس ده

سل کاله وروسته به مونږ ټول دوستان تر خاورو لاندې یو، زمونږ په کورونو کې به نا اشنا خلک اوسیږي، زمونږ ټوله شتمني به په بل چا پورې تړاو لري، مونږ به اصلاً د چا په یاد هم نه یو، ژوندی به‌لکه یې داده چې، له مونږ څخه څوک دی چې نیکه به یې په یاد وي؟

مونږ به د خلکو په یادونو کې محضې د یوې کرښې په ډول وو، زمونږ نومونه او څېرې به د خلکو له حافظې ووځي .

نو بیا ولې مونږ په دې کې ډېر فکر کوو چې خلک زمونږ په اړه څه ډول فکر کوي، ولې د خپلو شتمنیو، کورونو او اهل په فکر کې یو، سل کاله وروسته به دا هر څه بې کتې وي!!

په کائناتو کې زمونږ عمر د رڼا د یوه پرک هومره نه دی، چې هغه به هم د سترګو په رپ کې پای ته رسیږي، له مونږ وروسته به په لسګونو نسلونه راځي، هر نسل به په بېړه له دې دنیا سره مخه کوي، د خپلو یو پر ځلورمه برخه ارمانونو له پوره کېدو مخکې به د ژوند جنډه نورو نسلونو ته سپاري، که په نړۍ کې مونږ خپل حقیقت وپېژنو، په کائناتو کې خپل حقیقي موده وپیژنو ایله به پوی شو چې هغه زمونږ تر تصور ډېره کمه ده!!

سل کاله وروسته به د تیارو په منځ کې دې حقیقت ته ورسېږو چې دنیا څومره لوېدلې وه، د هغې په ډېرو لږو زمونږ خوبونه څومره ناولي وو، هلته به بیا ددې ارمان کوو چې کاشکې مو د نیکیو په تر سره کولو کې خپل ټول ژوند تېر کړی وای.

نو لا خو چې د ژوند ډیوه مو بله ده-په کار ده چې عبرت ترې واخلو او په ځان کې بدلون راولو .

په یاد ولرئ چې د ګناه لذت لمنځه ځي خو ګناه یې پاتې کېږي، همدا رنګه د اطاعت ستړیا هم لمنځه ځي خو ثواب یې پاتې کېږي .

خدایه زمونږ خاتمه سمه کړه او له خپلو نیکو بندګانو څخه مو وګرځوه. آمین

استاد : توريالی همت

# افغانستان

## د ټولو قومونو ګډ کور دی

ګرانو لوستونکو! رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله له مکې څخه مدينې منورې ته هجرت کاوه نو مکه مکرمه يې مخاطب کړه چې ای مکې ته ماته ډيره ګرانه او محبوبه يې ستا کوڅو، غرونو او ډاګونو سره زه مينه او محبت لرم قسم په الله تعالی چې ستا اهل ظالم شوی نه وای او زه يې مجبور کړی نه وای ما به له تا څخه هجرت نه وو کړی پدې اساس وطن، وطن وې يو لوی کور وي او يو وړوکی کور ، وطن لوی کور عظيمه او ستره مور ده له وطن سره مينه او محبت يو فطري او طبعي خبره ده . محترمولوستونکو د اسلام دښمنان له افغانستان څخه شام اوعراق جوړول غواړي، مونږ اوتاسې بايد په دې حساسو شېبو کښې ددښمنانوساز شونه ناکام کړوځکه چې اسلام زمونږ روح او افغانستان زمونږ جسددی ددواړوساتنه او پالنه په هر افغان فرض ده او په چا کښې چې يوه ذره ايمان هم وي هغه به له خپل هيواد سره مينه او محبت ضرور لري اوله لويشت لويشت خاورې څخه به يې دفاع کوي او څوک چې ورته په کږو او خيرنو سترګو ګوري سترګې به ترې باسي همداشان هر څوک چې د يرغلګرو په خلاف په لاس ، ژبې او قلم سره مبارزه او جهاد کوي او د يرغلګرو د شتون او اډو سره مخالف وي د هر يرغلګر او مداخله ګر خلاف مرچل او سنګر نيسي دا کسان محب وطن او اصيل افغانان دي او د خپل وطن او ولس حق يې ادا کړی او هر څوک چې د بهرنيانو د اډو شتون او موجوديت ملاتړ او حمايت کوي او د بهرنيانو د ګټو او اهدافو د تحقق لپاره کار کوي دا کسان محب وطن او اصيل افغانان ندي بلکې همدوی د پرديو تالي څټي غلامان د افغانستان او د افغانانو دښمنان دي پدې اساس او په دې حساسو شرائطو کښې مونږ ته له بل هر وخت څخه زيات ضرورت دی چې په خپل وحدت يووالي او سنجيده حرکت د دښمنانو دسيسې شنډې کړو قدرمنو لوستونکو! د افغانستان ټول قومونه مسلمان او ولسونه يې غيرتي دي خپل تېر تاريخ ته په کتو سره يو ځل بيا د وحدت او اتفاق مظاهره وکړئ په هر قوم کښې ښه او بد خلک شته د څو اوباشو، غلامانو او جاسوسانو له کبله بايد ټول قوم سپک ياد نشي او د يوی سپړې په سر ټول پوستين ته اور وانه چول شي دا هم يو حقيقت دی چې سلطان محمود غزنوي، شهاب الدين غوري، احمد شاه بابا او وزير اکبر خان د ټول ولس قهرمانان دي ټول ولس او ټول قومونه پرې فخر کوي خو شاه شجاع او ببرک کارمل بې ننګه غلامان او ټول ولس ته د شرم او پيغور طوق لعنت دي پدې اساس هر پښتون کې چې ايمان او غيرت وي احمد شاه ابدالي دی او هر فارسي ژبي کې چې ايمان او غيرت وي هغه سلطان محمود غزنوي دی او کوم پښتون کې چې ايمان او غيرت نه وي له وطن اوولس سره مينه او محبت ونه لري هغه د شاه شجاع غونډې غلام دی او کوم فارسي ژبي کې چې ايمان اوغيرت نه وي، د وطن او ولس سره مينه او محبت ونه لري هغه ببرک کارمل غونډې غلام دی عزتمنو لوستونکو په هيواد کې د پښتو او فارسي په نامه د تعصبونو او جګړو رامنځته کول د افغانستان د دښمنانو لخوا د ګمارل شوو ايجنټانو او جاسوسانو دنده، وظيفه او کار دی چې ولس بايد ورته متوجه او بيداروي هر څوک چې قومي سمتي او تنظيمي تعصب ته لمن وهي او په دې کاذبه دعوه د خپل قوم يا ډلې د خدمت ډيرې په سينه وهي ما قبل او مابعد ته يې که په ځير سره وکتل شي وبه ليدل شي چې د پرديو ايجنټان او د خپل ولس او قوم اصلي دښمنان همدوی دي په

حقيقت کې افغانستان کې ميشت قومونه د زرګونو کلونو اوږد تاريخ لري د يو بل سره د ويني رشتي لري داسې کورونه هم شته چې څه غړي يې پښتو او څه فارسي وايي د ډيرو وګړو پلار پښتون اومور فارسي ژبي وي او د ډيرو پلار فارسي ژبی او مور يې پښتنه وي داسې کلي او کورونه هم شته چې د ورځې فارسي او د شپې په پښتو خبرې کوي او داسې کلي ډير دي چې پښتو او فارسي ژبي پکې ګډ د وروری ژوند کوي .

محترمو لوستونکو!

دا هم يو حقيقت دی چې بهرنيان ځينو پښتنو او فارسي ژبو عناصرو ته پيسې ورکوي تلويزنونه او اخبارونه يې په اختيار کې ورکړي يو د بل خلاف فعاليت کوي پداسې حال کې چې پښتانه او فارسي ژبي د زرګونو کلونو د يوځای اوسيدو او ورورګلوی ګډ تاريخ لري خونن همدې بهرنيانو د پيسو په زور د يو بل په وړاندې د دښمنی په سنګر کې درولي دي يو د بل په خلاف استعمالوي د قومي سمتي او ژبني تعصبونو په اساس يې سره ويشي حتی مشران يې ترور کوي او پړه يې په يو بل اچوي په داسې حال کې چې دغه د قوم سمت او ژبې دروغجن مدعيان نه د خپل قوم سره مينه لري نه د هغوی د خدمت جذبه ورسره شته نه دهغوی د ارامی او سوکالی په فکر کې دي بلکې ورځ تر بلې يې په بدبختي ګرفتارول او اخته کول غواړي کوم کسان چې د خپلو بادارانو ته د خوش خدمتي او خپلو جيبونو د ډکولو په ناروا رقابت کې لويدلي دي هغوی ته وايو چې راځئ د خپل ولس د شهامت جهاد او ميړانې قدرداني وکړئ د پرديو غلامي پريږدئ د خپل هيواد د جوړولو په فکر کې شئ په خپل ولس اعتماد وکړئ او د اسلام د عملي کيدو او په وطن کې د اسلامي نظام د جوړيدو په فکر کې شئ چې د ټولو جنجالونو، مشکلاتو او ستونځو يواځني د حل لاره همدا ده نورې ټولې لارې ولس او وطن ته د لازياتې بربادی او نابودی لامل ګرځي او غيرتي ولس ته مو پيغام دا دی چې د وطن ، قوم او ملت د دروغجنو خواخوږو او مکارو مدعيانو څخه خپل برائت او بې زاري اعلان کړي او د دښمنانو په سترګه ورته وګورئ په خپلو کې سره د وروری لاسونه ورکړئ ترڅو دښمنان خپل دا ارمان چې افغانستان تجزيه شي ځان سره ګورته ويسي او افغانستان د تل لپاره يو ازاد ، مستقل او اسلامي هيواد په توګه په نړی، کې پاتې شي وما ذلك على الله بعزيز

قدرمنو لوستونکو! دا هم يو حقيقت دی چې په افغانستان کې ړندې بمباری او بې هدفه چاودنې د اسلام او افغانستان د دښمنانو کار دی چې عام ولس ته پکښې مرګ ژوبله رسيږي او ګټه يې د اسلام او افغانستان دښمنانو ته رسيږي دا چې امريکايانو څو څو ځلې د ملي اردو ، پوليسو او اربکيانو په پوستو بمباری کړې همداشان يې د افغانانو په کورونو، ودونو، جنازو او جوماتونو بمونه غورځولي دي او په ګڼو چاودنو کې هم د امريکايانو لاس لرل ثابت شوي چې په سلګونو افغانان يې په شهادت رسولي نه خو چا د امريکا په خلاف مظاهره وکړه او نه چا جلسه بيا د امريکا ايجنټانو د پورته ذکر شوو جناياتو، ظلمونو او وحشتونو پړه په افغانانو اچولې او افغانان يې د يو بل خلاف هڅولي او درولي چې دا ټول تحريک د افغانستان د دښمنانو لخوا صورت نيسي

ګرانو لوستونکو! دا هم يو حقيقت دی چې د بهرنيانو په موجوديت کې نه د اشرف غني او عبدالله په استعفاء او پاتې کيدو امن و امان راتلای شي او نه په انتخاباتو او مذاکراتو امن راتلای شی که په چا افغانستان ګران وي او ورسره مينه لري دلته د امن اوامان غوښتونکی او د چاودنو، جګړو، ګډوډی او ظلم سره په رښتيا مخالف وي هغوی بايد هيواد کې د سولې په مخ کې د پرتو عواملو د لرې کولو کوشش وکړي چې تر ټولو لوی خند اولوی عامل د بهرنيانو شتون او موجوديت دی پکار ده چې د بهرنيانو د مداخلو په خلاف مظاهرې وشي ولسي پاڅون او قيام ته لاره هواره شي څکه د خارجيانو له وتلو پرته هيواد کې نه سوله راتللی شي اونه د ابادی ودانی او سوکالی کاروان کيدای شي همداشان هر څوک چې د افغانستان د بې ګناه وګړو په وژلو بې عزته کولو او ربړولو خوشحاليږي هغوی اصيل افغانان نه دي هغوی د پرديو تالي څټي غلامان دي الله تعالی دې د دوی اصلي څيرې ګرانو وطنوالو ته څرګندې او رسوا کړي او الله تعالی دې اسلام او خپل هيواد سره مينه او محبت د افغانانو په برخه او نصيب کړي .

آمين يارب العالمين والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

قاري سعيد خوستی

# باعزته سوله

## چې دواره لوري يې جلا تعبير لري!

د کابل د اداري مشر- اشرف غني د واک له لومړي ورځې په دروغو او فريب کارۍ او متناقضو دريځونو شهرت لري. د انتخاباتي منډو ترړو پر مهال يې د ائتلافي حکومت په وړاندې دومره تيره ژبه کاروله چې يو مهال يې دا ډول کړنه ملي خيانت وباله او هوډ يې څرګند کړو چې په هيڅ ډول به داسې سيستم ونه مني چې په ائتلاف ولاړ وي خو په ډېر لنډ زماني واټن يې هماغه ائتلاف په ډيره سپکه بڼه ومانه بلکې ټول دولت يې نيمايي وويشه.

د سولې سره هم د نوموړي برخورد په هماغو زړو ميتودونو ولاړ ؤ څه موده وړاندې کله چې ټرمپ نوې جنګي ستراتيژۍ اعلان کړه نوموړي هم د بدماشۍ جنون واخيستو او ويې ويل: له طالبانو سره سوله نه کوي بلکې د زور له لارې بايد دا ډله د خبرو ميز ته راکش شي خو د ټرمپ د جنګي ستراتيژۍ له ناکامۍ وروسته چې کله سپينې ماڼۍ خپلو مامورينو ته د طالبانو سره د تماسونو د ټينګولو امر وکړو اشرف غني هم په ډراماتيک ډول ۱۸۰ درجې تغير وکړو او په يوه غونډه کې يې ويل: طالبانو سره له قيد او شرط پرته خبرو ته تيار دی او افغان دولت د سولې لپاره هيڅ مقدماتي شروط نه لري.

خو کله چې د اسلامي امارت مذاکراتي ډلې له امريکايانو سره پنځم پړاو خبرې پيل کړې او امريکايانو له اسلامي امارت سره د امريکايي ځواکونو په وتلو توافق وکړو، د کابل د اداري مشر- او نور چارواکي وارخطا شول چې که امريکايان ووځي د دوی قدرت هم په خطر کې واقع کيدای شي نو يې په لږ زماني واټن سره خپلې خبرې له ياده ووتې او له ځان يې سره خطونه وکښل. اسلامي امارت چې د کابل اداره په رسميت نه پيژني او نه يې خپل مقابل لوری بولي، د دوی سرو کرښو ته هيڅ اعتناء ونه کړه.

د کابل د اداري مشر او نور چارواکي په خبري غونډو او پټو ښکاره مجلسونو کې اوس يوه نوې اصطلاح کارول پيل کړي چې دوی سوله غواړي خو باعزته سوله.

باعزته سوله هم د اسلامي امارت غوښتنه ده او هم د افغان ولس او هم د کابل د ادارې، خو د باعزته سولې لپاره د کابل اداره جلا او اسلامي امارت جلا تعريف لري.

دلته اصلا دا اصطلاح د اتلس کلنې جګړې (جهاد) په مشروعيت پورې تړلې دی. اشرف غني او نور امريکايي مزدوران هڅه کوي چې د تاريخ له تور ليست څخه ځانونه سپين کړي او د دوی جنايات او خيانتونه په راتلونکې سوله کې پټ شي او د امريکايانو او صليبيانو له لوري رامنځ ته شوې بې لارې دوام پيدا کړي او هغه کرايه شوي قاتلان چې اتلس کاله يې خپل ملت د امريکا او اروپا د نايټ کلبونو د امنيت لپاره ووژلو، لا هم بايد سرې سترګې وګرځي او هيڅ پروا په غاړه ونه لري.

اسلامي امارت بيا باعزته سوله د خپلو شهيدانو د ارمانونه پوره کيدو ته وايي چې له اسلامي نظام پرته په بل ډول نه شي پوره کيدای. اسلامي امارت به په دوو شيانو هيڅ کله له چا سره معامله ونه کړي، اسلامي نظام او د خارجي ځواکونو په بشپړ ډول وتل.

د دې دوو هدفونو د ترلاسه کيدو لپاره که په لاره کې هر ډول تنازل کيږي، مشروع دی او بايد چې اسلامي امارت د امريکايي ځواکونو له وتلو وروسته په جنګ تمرکز ونه کړي بلکې په نظام جوړونه او د اداري جوړښتونو په تقويه کولو ډير تمرکز وکړي.

د اسلامي نظام او هيواد له اشغاله د خلاصيدو لپاره هم نظامي لار زموږ په وړاندې خلاصه ده او هم سياسي که دا دوه هدفونو په هر ډول تنازل ترلاسه کيدای شي بايد چې ناغيړی پکې ونه شي.

پای



# د لودیځ نړیوالتوب (ګلوبلایزیشن) موخې!

عمیر




د پخواني کمونیستي بلاک لمنځه تللو وروسته تر ټولو لوی ناورین چې بشري ټولنه او نړۍ په ځانګړي ډول مسلمانان ورسره لاس او ګریوان دی هغه د لودیځ له لوري تعریف شوی او فرمولایز شوی نړیوالتوب دی. د کپیټلیستي نړۍ مخکښ ځواکونه د خپلو اوږدمهاله دایمي ګټو او اقتصادي برلاسي لپاره غواړي د څو ملتي شرکتونو او نړیوالو سازمانونو په مټ د نړۍ د ملتونو شتمنۍ، سوداګري، مارکیټونه، کلتور، ارزښتونه، مذهب، عقاید او په ټوله کې تمدن یې استثمار کړي..

دوی د نړیوالتوب دغولونکې داعیې له لاري کوشش کوي دا هرڅه پرته له کوم سرحدي، اقتصادي، سیاسي، کلتوري او قانوني خنډ څخه په ټوله نړۍ کې ددوی په مخ خلاص وي تر څو ددوی د اقتصادي برلاسي او تمدني جګړې په مقابل کې د هیڅ یو هیواد تولیدات، صنایع، ټیکنالوژي، سوداکري، افکار او ان معنوي ملکیت غلبه او برلاسي پیدا نه کړاي شي او د نړیوالي سیالۍ په ټولو ډګرونو کې تل خپل رقیبان په ځانګړي ډول مخ پروده او دریمه نړۍ راځملوي، سر راپورته کولو ته یې پرېنږدي او ترې خود کفا نه شي تر څو د اقتصادي سیالۍ میدان ورته تک تنها پاتي وي.

په همدي موخه یې په ټوله نړۍ کې د خپلي هر اړخیزي سلطي د پراختیا لپاره ټول مذهبي، اخلاقي، تهذیبي او معنوي ارزښتونه ونړول تر څو په وړاندي یې هیڅ تمدني ځواک خنډ واقع نشي.

د همدي موخو لپاره تل کوشش کوي په نړۍ په ځانګړې ډول اسلامي نړۍ کې خپل تالي څټي مشران، مزدوري رسنۍ، کرایې لیکوالان او فکري مکتبونه ایجاد او نصب کړې ترڅو دهمدې نړیوالتوب یا د لودیځې نړۍ د هر اړخیزي سلطي لپاره ډنډوري وغږوي او له خپل دین، تهذیب، ملي ګټو، تاریخ او ارزښتونو څخه ناخبره ځوانان دي ډول ته و نځوي.



# سرطان ...
# د اشغال بل ارمغان

فاتح افغان

اشغال د ټولو فسادونو مور ده، تاریخ شاهد دی چې هیڅ یوه هیواد د اشغال په شتون کې ښه ورځ نه ده لیدلې ، نه یې پرمختګ کړی او نه پکې سوله او ټیکاو راغلی، اشغال په دیني، فکري، کلتوري، تعلیمي، اخلاقي، صحي، سیاسي او اقتصادي برخو کې ډیرې ویجاړیانې رامنځته کوي چې ولسونه یې له لنډ مهاله او اوږد مهاله منفي اغیزو تر ډیره کړیږي.

هوکې! استعمار د بیلا بیلو فسادونو په رامنځته کولو سره غواړي ولسونه تذلیل او ایل کړي او خپل پلانونه بې له مزاحمت څخه تطبیق او عملي کړي:

الله جل جلاله فرمایي: {قَالَتْ إِنَّ الْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا وَجَعَلُوا أَعِزَّةَ أَهْلِهَا أَذِلَّةً وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ }النمل٣٤

لنډ تفسیر: ملکې (بلقیس ورته )وویل: پاچایان چې کله کومې سیمې ته په زور ننوځي فسادونه پکې برپا کوي، (ورانی او ویجاړی رامنځته کوي، د خلکو ترمنځ اختلافات اچوي، شته یې لوټي،) عزتمن خلک یې (په وژلو، نیولو، شړلو او د تذلیل په نورو ډولونو ددې لپاره )سپکوي، (چې د خنډونو په لیرې کولو سره خپلو موخو ته درسیدو لپاره لاره هواره کړي.) (الله جل جلاله فرمایي: چې) همدا د دوی کړنه ده.

د اشغالګرو له پخوا راهیسې دا عادت دی چې د اشغال شوې سیمې په خلکو باندې هیڅ رحم نه کوي د ضرر وررسولو په لار کې له هیڅ نوعه جنایت څخه دریغ نه کوي، کورونه یې نړوي، چاپې پرې وهي، بمبار پرې کوي،خلک یې وژني ، نیسي یې، ربړوي یې، تذلیلوي یې، له خپلو سیمو څخه یې شړي ویروي یې د خلکو ترمنځ یې اختلافات اچوي، د ولسونو ترمنځ مذهبي، سمتي او لساني توپیرونو ته لمن وهي، ډول ډول فتنې زیږوي ترڅو ورباندې خلک مصروف وساتي، اشغال له ولس څخه واک، اختیار او اراده سلبوي او په برخلیک یې لوبې کوي.

موږ شاهدان یو د همدې کرغیړن امریکایي اشغال تر مستقیمې قوماندې لاندې مو په دیني ارزښتونو، اسلامي شعائرو او مقدساتو ملنډې ووهل شوې، د امریکایي اشغال تر ملاتړ لاندې ځینې کسان په جاره له سپیڅلي دین اسلام څخه مرتد او بې دینه شول.

د همدې امریکایي اشغال تر سیوري لاندې زموږ ارضی تمامیت تر پښو لاندې شو، ملي ارزښتونو مو مسخره او د اشغالګرو د رضا لپاره د هغوی پښو ته غورځول کیږي.

د همدې اشغال تر سیوري لاندې بیکاري او جهالت کوم حد ته ورسید؟ د فقر ګراف څومره لوړ شو؟ د جرمونو د کچې خو پوښتنه مه کوه، نا امنیو او جګړو زور واخیست، اداري فساد اوج ته ورسید، د چور چپاول، رشوت، سود، غلاو او غصب بازار ګرم ده، اشغالګرو دګران هیواد د معدنیاتو او قیمتي ډبرو غلا ته متې رابډ وهلي دي،

او په منظم شکل د هیواد شته لوتې، د مخدره موادو قاچاق تر بل هر وخت زیات او د معتادینو شمیر ملیونونو ته رسیږي، د فحشا او اخلاقي فساد څپه خو دومره اوج ته رسیدلې چې هر وخت میډیا په داسې خبرونو داسې شخوند وهي ته به وایې چې د تېرو اتلسو کالو ستره لاسته راوړنه ده.

لنډه دا چې د اشغالگرو په شتون کې هیواد ورځ تر بلې دتباهی پر لور گامزن ده، د نیواک زیانونه دومره زیات او اظهر من الشمس دي، چې فکر نه کوم کوم د عقل څښتن دې ترې انکار وکړي، د اشغال له ورانکاریو څخه به یوازې هغه غلام فطرته خلک سترگې پټوي چې د اشغال په پیو تغذیه او داشغال په دوام کې خپله بقاء گوري.

که د اشغال ویجاړیانې شمارو شاید یوه لیکنه یې احتواء ونکړای شي، خو رازو د اشغال په یوه داسې فساد رڼا اچوو چې صحي اضرار یې تر پیړیو پاتې کیږي او نسلونه نسلونه مو گوابښي.

هغه دا چې گران هیواد افغانستان د امریکایې وسلو لپاره د ازمیښت د ډگر او لابراتوار په توگه وکارول شو او کارول کیږي، د گران هیواد زمکه او فضا د تور زړو حاقدو اشغالگرو په لاس کې ده چې هر وخت هر چېرې هر ډول وسله کارول وغواړي کارولی یې شي او هیڅوک کاره هم نشي ورته کتلی.

څو میاشتې وړاندې د ستار اینډ ستراپیس په نوم امریکایي ورځپاڼې افشا کړه چې امریکا په افغانستان کې نوې کیمیاوي وسلې ازمویې.

د کرغیړن صلیبي اشغال له لوري د کیمیاوي او زهر لرونکو وسلو بېدریغه کاروني منفي اغېزې په دې وروستیو کې ورو ورو په راڅرگندیدو دي.

ولس شاهد دی چې په دې وروستیو کې د سرطان مهلکه ناروغی په هیواد کې په ډراماتیک ډول زیاته شوې، د ډاکټرانو په باور د سرطان ناروغی د خپراوي تر ټولو مهم سبب د اوبو، هوا، او خاورې ککړتیا ده چې د بمبار او د اشغالگرو له لوري د بېلا بیلو وسلو په ځانگړې توگه د کیمیاوي وسلو له کاروني په نتیجه کې منځته راغې.

په صحت وزارت کې د سرطان د کنترول د برنامې رئیس ډاکټر میهن عبد الله، په جمهوریت شفاخانه کې د آنکولوژی دپارتمان مسوول داکتر ذبیح الله استانکزی او د کاپیسا د روغتون رییس ډاکټر روح الله له اسپوتینک اژانس سره په یوه ویډیویي مرکه کې د سرطان د نورو اسبابو تر څنگ په افغانستان کې د بېلا بېلو بارودو او کیمیاوي وسلو کارونه په گوته کوي.

څېړنې ښیي چې د جگړې د پاتې شونو له امله سرطان د ناروغی په افغانستان کې د خپرو شویو ناروغیو په سر کې قرار لري.

د سرطاني ناروغیو د تحقیقاتو نړیوال دفتر ( International Agency for Research on Cancer = IARC) د راپور پر اساس په ۲۰۰۸ م کال کې په افغانستان کې دسرطان ۱۴۰۰۰ پیښې ثبت شوې وې چې شاوخوا ۱۱۰۰۰ ترې مړه اټکل شوي وو، دغې اداري په ۲۰۱۲ م کال کې د سرطان پیښې ۱۶۰۰۰ اټکل کړې وې، او په ۲۰۱۵م کال کې یې ۲۰۰۰۰ اټکل کړې وې چې شاوخوا ۱۶۰۰۰ تنه یې مړه اټکل کړي وو، په ۲۰۱۸ م کال کې ازادی رادیو د صحت وزارت په استناد راپور ورکړ چې سرطان ناروغی په افغانستان کې په چټکۍ سره پرمختگ کوي .

ویل کیږي چې په دوهمه نړیواله جگړه کې په هیروشیما او ناگاساگي باندې د اتوم بم له غورځولو وروسته د سرطان په ناروغانو کې په ډراماتیک ډول زیاتوالی راغی.

پوځي شنونکي وایي : چې بهرنیانو افغانستان د خپلو وسلو د لابراتوار په مرکز بدل کړی دی، او خپلې زهري او اتوم لرونکي ډول ډول خطرناکې وسلې دلته ازمایې دوی وایي چې تر دې مخکې هم ورته وسلې استعمال شوې چې افغانانو ته یې ډیر زیانونه اړولي دي، چې د بمونو مور یې ژوندی بېلگه ده.

پوځي شنونکی محمدا گل مجاهد له کابل نیوز سره په خپلو خبرو کې وایي:

بـدون لـه شـکه چې افغانسـتان لابراتـوار ده د نړۍ، دلتـه د مـور بمونـه خلک استعمالوي او ازمـائش يـې کـوي دلتـه هـر نوعـه نـوې سـلاح چـې دوی راباسي دلته ازمايش کيږي د دوی نـوي عسکر چې جذب کيږي د ټرين لپاره د جنګ تربيت لپاره افغانستان تـه راليـږل کيږي، دلته روزل کيږي بيا بيرتـه څې خپلو هيوادو ته.

د پوهـانو پـه انـد پـه پريمانـه کچـه يورانيم د امريکا له لـوري پـه افغانسـتان کې کارول شوي، په داسې حـال چـې د وسلو له پاتې شونو څخه د افغانستان پاکولو ته هيڅ پام نه ده کـړی، او نـه د چاپيريـال متخصصـين افغانسـتان تـه راپرېښودل کيږي.

دوکتور محمد داود ميرکی امريکـا مېشـتی افغـان دی. پـه سياسـت او اقتصـادي-اجتمـاعي پرمختـګ کـې متخصص دی او د دوکتورا تـر مرحلې يې زده کـړې کـړې. پـه نړيوالـه سـطحه پېژنـدل شـوې څېـره ده او پـه مختلفـو نړيوالو غونډو او ټلويزيونـو کې مېلمـه کېږي. په افغانستان کې يـې د يورانيمـو د استعمال په اړه يې څېړنـه کـړې او پـه خپـل کتـاب : « Afghanistan after Democracy» - د ډېموکراســـــي وروسته افغانستان- کې ليکي:

بيخي ښکاره او ثابته شوې ده چې دا وسـلې پـه افغانسـتان کـې اسـتعمال شـوي، پـه لـومړی وار دوی دغـه ډول وسلې له عراق سره په ۱۹۹۱م کـال پـه جګړه کې استعمال کړې. د دغـو وسـلو لـه اسـتعمال سـره پـه بصـره او نـورو عراقي ښارونو کې سرطان زښـت ډېر شو، ماشومانو چې به زيږېدل کاږه واږه به وو، نور بلا ډېر مرضـونه پيدا او ډېر خواره شول.

کله چې پر افغانستان بريـد وشـو، مـوږ ډېـر انديښـمن شـوو چـې پـه افغانسـتان بـه هـم دغـه ډول وسـلې استعمال کـړي او دوی پـه حقيقـت کې استعمال کړې دوی اوس ترکيبي وسلې «Weapons Composite» جوړوي.

دغه وسلو کې يورانيـوم او خـاص چاودېدونکي مواد سره يو ځـای شـوي. کله چې دغه بمونه والوځي يورانيوم پـه ډېـرو وړو برخـو ويشـي، دومـره وړې برخې چې په سترګو نـه ليـدل کېږي او انسان يې تنفس کوي، کلـه چـې تـنفس شي، دا پـه ششونو(سږو) او غـدو کې جذبيږي چې دا د انسان پـه کروموزوم کې تغيير راولي چې د «DNA» يـوه برخه ده. کله چې کروموزوم کې تغيير راغـی، سـرطان هـم مـنځ تـه راځـي، د نارينه د اولاد پيدا کولو مـوادو کې هـم تغيير رامنځ ته کېږي، انساني شکل هـم دغلتـه خرابېږي، مطلـب داچـه د نويـو زيږيـدلو انسـانانو ظـاهری مـخ او نـور اندامونه به بالکل مسخ شـوی ښه لـری پوزه ، خولـه ،سترګی ، غوږونـه او نـور اعضـا هـيڅ يـو بـه يـی هـم عـادی او طبيعی نه وی.

دکتور مېرکی زياتوي: د امريکـا لـه خوا استخدام شوي يورانيوم څلور سوه مليارده کلونه غواړي چې اثر يـې ورک شي.

د روغتيـــايي چـــارو يـــو بـــل متخصص فيض محمد صافی لـه کابـل نيـوز سـره د خپلـو خبـرو پـه تـرڅ کې وايي:

دوی کـــه دغـــه ډول وســـلې استعمالوي دا آدم کشان دي، دا د نړۍ د سـطحې نـه د مسلمانانو خصوصـا د افغانـانو دغـه مکمـل نسـل ختمـوي، دا زروي ســـــــلاحګانې دي، دا زروي سـلاحګانې د انسـان د بـدن پـه هـره حجـره بانـدې تـاثير کـوي، سـرطان مينځتـه راوړی شـي، مـرګ مينځتـه راوړی شـي، معيوبيـت مينځتـه راوړی شي، د زړه امراض مينځته راوړی شي.

وړاندې زياتوي : متاسفانه چې د افغانستان مظلوم ملت ويده دې.

بناء افغانان بايد دا موضوع جـدي ونيسي، په دې اړه خپل ږغ پورته کړي، ظلم ته "نه" ووايي، لـه اشـغالګرو څخـه خپل وطن آزادول زمـوږ تاسې ديني او ملي وجيبه ده، په دې توګـه کـولای شـو خپل راتلونکي نسلونه د اشغال له ناوړه اغيزو څخه محفوظ وساتو.

او کـه خـدای ناخواسـته افغانـان غلي کښيني، پـه سـرونو بـه يـې تجربـې روانـې وي او پـه راتلـونکي کـې بـه د کيمياوي وسلو نـاوړه اغيـزې تـر ډېرو نسلونو پورې پاتې وي.

# سیاف او جرګه؛

## سپینې سولې ته سرې کرښې!



لیکوال: جعفر عمریار

پرون د ثور په نهمه نېټه د ارګ له خوا رابلل شوې نندارېزه مشورتي جرګه د ۳۲۰۰ ګډونوالو په شتون سره پیل شوه، د اشرف غني له خوا سیاف د دغه ناستې لپاره مشر وټاکل شو، چې همدا هیله هم ځنې کېدله؛ ځکه د افغانستان معاصر تاریخ ته په کتلو سره دغه ډول غونډې او جرګې تل د دغه ډول درباري، منحرفو او لار ورکو انسانانو په فتواوو او خبرو سره پیلیږي، قانونیت ورکول کیږي او په ولس باندې تپل کیږي. چې غوره بېلګه یې په تېره جرګه کې د صبغت الله مجددي شتون، مشري او وندېه وه؛ حتې پر ډېموکراسۍ د غه زړه بایللي مفتي د وخت واکمن حامد کرزی د امنیتي تړون د نه لاسلیکولو په صورت کې په خپل هجرت! سره چلنج کړ.

له کله نه چې غني په ارګ کې د مصالحي عالي شورا د جوړولې هڅې روانې کړې وې، په نوموړې شورا کې یې سیاف ته دنده سپارلې وه؛ ترڅو سولې ته چوکاټ یا د دوی په اصطلاح سرې کرښې وټاکي. چې بیا وروسته هغه د دوی سرې کرښې هم رابرسېرنې شوې. اشرف غني اونورو ملاتړو چارواکو یې په ډېرې غونډو کې یادونه وکړه؛ چې د ښځو حقوق، اقتصادي لاسته راوړنې او د تېرو اتلس کلونو لاسته راوړنې زمونږ سرې کرښې دي، چې د روانې جرګې په بهیر کې د سیاف خبرې هم پر ښځو راچورلیږي.

د پردې تر شا او په حقیقي بڼه له سرو کرښو د دوی موخه یواځې او یواځې په کابل کې له څو بې بندوباره تلویزونونو، غصب شوو ځمکو، په عامه شتمنیو جوړو شوو لوړمنزلو، خارجي سفارتونو او پر واکمنې ډېموکراسۍ د اغزن سیم راتاوول دي؛ تر څو بدلون ونه مومي، او دوی پکې همداسې واکمن پاتې شي. هسې یې د بېچاره او ډېموکراسۍ ځپلو ښځو حقوق او رنګې بنګې اقتصادي لاسته راوړنې پلمه ګرځولې.

سیاف چې د افغانستان په تېر ځلوېښت کلن ناورین کې یوه مخکښه او په جګړوکې ښکېله پېژندل شوې څېره ده، د کابل د لوېدیځو سیمو په جګړو کې د ده ونډه د یادولو وړ ده. خو له دې ټولو راپدې خوا سیاف بیا د امریکایي ښکېلاک او یرغل په مټ د واکمن اتلس کلن نظام په غېږه کې خورا وغوړېد، مشهور شو، انحرافي استدلال یې وکړ، د دین له پټې یې د روان جهاد ځپلو لپاره نظام ته ډول ډول مشورې ورکړې او په منحرفو درباري علماوو کې یې د طالب ضد او امریکا ملاتړ فتواوو او سلا مشورو ورکولو کې خو یې هغه د چا خبره ښېخې ریکارډ قایم کړ. اما د د شننونکو په باور د ده




هرڅه ځکه په اوبو لاهو شول چې ده هرڅه دین لپاره نه بلکې د دین په وړاندې ترسره کړل او لـه کـومې محسوسـې پـایلې پرته د تېـر اتلـس کلـن تـاریخ توره برخه وگرځېدل.

سیاف په دې ښه پوهیږي چې رېښتیني او سپینه سوله یـواځې او یـواځې د اسـلامي نظام په غېږه کې شـونتیا لـري او بس.اسلامي نظام د خارجي ځواکونو لـه بشـپړ ایسـتلو او شته حکومتي فارمټ او اسـاسي قـانون له بدلون پرته شونتیا نـه لـري، امـا دغـه طالب ضد معانده څېره چې په خپله عقده او عنـاد سره نومـوتې ده، غـواړي ټـولې هغه لارې چارې سبوتاژ او بـلاک کـړي کومې چې رښې سولې ته رسیږي.

د کابـل رژیـم مخـالفینو او د روان انقلاب مخکښانو سولې ته رسـیدونکې رښـې لارې د خپلـې مبـارزې لـه پیلـه سپینې ترسیم کړې دي، په ځلونو یې پـه خپلو رسنیزو بیانیو کې په رښـه او صـفا لهجې پرته له فلسفي او منطقي استدلال بیـانې کـړې، دوی وایـي: امریکـایـې ښکېلاک او شته غیر اسلامي نظام ته د پای ټکی اېښودل زمونږ سپینې لارې او سپینې کرښې دي. اما دغـه لـه عقـل او فکـره خـالي کـوپړۍ د یـوې حربـې لـه ناکامۍ ورسته په بله ورټوپ کړي، چې گـواکي پـه دې حربـه بـه مخـالفینو تـه فرېب ورکړو.

مگر هغه مخالفین چې له تېر آتلس کلن انقلابه یې ښه له پنده ډک درسـونه او تجربې زده کړې، له تـاریخ، قوانینـو، نړیـوالې ډیپلوماسـۍ او ډیموکراتیکـو فرېبونـو یـې هـر اړخېـزې زده کـړې او ترخـې تجربـې اخیسـتې، پـه دغـه یـوه زردشتي جرگـه بـه تاسـې تـه لـه هرڅـه څنگه درتېر شي؟ د سپین منزل په لور به خپل دغه پیل کړی آتلـس کلـن سـفر پـه نیمه لار کې څنگه پرېږدي؟ ستاسـې پـه اند له خپـل رب سره بـه تاسـې غونـدې خیانـت وکـړي؟ د خپـل ولـس، کونـډو، یتیمانـو لـه ټولـو ربړونـو او سـتونځو سرېـره بـه ستاسـې لـه دغـه درې زره کسـیزه جرگـې سره معاملـه او خـرڅلاو وکړي؟ داسې خو شونې نه ده!

همدا ډول اشرف غني هم د خپلـې ختیځ پېژندونکې پـوهې او سیاسـت لـه مخې په دې ښه پوهیږي چې لـه سـولې او اسـلامي نظـام لـه راتـگ څنگـه مخنیوی وکړي، څنگه د یوې بلې دورې لپـاره پـه واک کـې پـاتې شي او د ښکېلاک، استشراق او غـرب نابشـپړې پروژې دلته په سیمه کې بشـپړې کـړي. څنگه واکمنه او خوارځواکه ډیموکراسي د سیاف په استدلال او زردشـتي جرگـې په تشریعي اغـزن سـیم سره لـه بانـدنۍ صدمې وژغوري

# هرفرعون نیل ته راځي

لیکنه: امرالله عمران

افغانستان هغه هیواد دی چې دنړۍ په سطحه امتیاز لري ،چې هیڅ یو فرعون ته یې سر ندی ښکته کړی، او نه په اوږد مهال کې د چا مستعمره پاتې شوی، بلکې د نړۍ لوي لوي قدرتونه یې په خپله خاوره کې راپرزولي، په نوییمه لسیزه کې په ۱۳۵۷ میلادي کال د وخت لـویې زبـرزواک روسـیې پـر خپلـو مستعمرو بسنه ونه کړه او پښې یې افغانستان ته هم را اوږدې کړې.

سـره د بشـري او مـادي زواک پـه افغانسـتان یـې یرغـل وکـړ، د روسـیې استعمار ماتېدل هغه وخت یو خیـال وو، چې هېچـا یـې د مـاتې اټکـل هـم نشـو کولی، لـه لـس کلـن اسـتعمار وروسته د بشري او مادي زواک سره سره روسیې په افغانستان کې بشپړه ماتې وخوړه او د افغانانو د دوه نیم میلیونه خلکو د قرباني

لــه املــه تولــو هېوادونــو تــرې ازادي واخیسته. شوروي اتحاد یوازې روسیه پـاتې شـوه او تـول پـوځي ځـواک، مستعمرې، خاوره، اقتصاد او هر څه یې له لاسه ورکړل.

د روسیې د ماتې اثرات لاپاتې وه چې د نړۍ بل فرعوني زبرزواک امریکا په ۲۰۰۱ زکال کې د افغانستان په پاکه خـاوره نــا پاکــه قدمونــه کیښــودل، دافغانستان د یرغل لپاره یې له ځان سره د نړۍ نور وحشیان هم ملګري کړل او ۱۵۰ زره پوځیـان یـې د افغانـانو وژلـو لپاره افغانستان ته راولېږل ،او دلته یې یو بشپړ اسلامي نظام ړنګ کړ.

امریکا د القاعدې، مخدره توکو او نړۍ ته د ګواښ په پلمه دنړیوالو اصولو خلاف پر افغانستان یرغل وکړ؛ او بې دریغه یې بې سرفي خالې لاس افغانان

ووژل، زندانونه یې پرې ډک کړل، چې دا لړیـې لاهـم ادامـه لـري اوس دا دی د دوي د وحشـته اتلس کالـه تیریـږي خـو اوسني حقایق پـه افغانسـتان کې سـرچپه دي. نه نړۍ له ګواښه خلاصه شوه او نـه پـه افغانسـتان کـې مخـدره تـوکي ورک شول، او اوس افغانان د یو داسې بدنام نظام شاهدان دي چې حتا په نوم اخیستو یې شرمیږي !

خو اوسني حقـایق تولـو تـه ښکاره دي، چې امریکـا پـه افغانستان کې مـاتې خوړلې او نوره د پښو سپکولو په لټه کې ده دسـولې پـه بهانـه غـواړي نـور لـه افغانستانه ووځي.

یو ورځ به داسې هـم راشـي، چې امریکــا او نــاټو لــه افغانسـتان نـه پـه بشـپړ ډول وتلي وي او دلته یـو ســوچه، اســلامي او افغـاني نظـام راغلی وي او د میلیونونــو خلکــو هیلې پوره شوي وي.

امریکــا بــه پــه افغانستان کې د روسیې په برخلیک اخته کېږي او ماتې به یې حتماً موږ په خپلو سترګو وګورو. خو بېړه به نه کوو، ځکه موږ چې اتلس کاله انتظار وکړ؛ نو لږ انتظار نور هم کولی شو.







# گلڅونه

## ترسهاره ایسارنه شي!

جهادي عمري

داشپه کړه په لار تیره تر سهاره! ایسارنه‌شي
منزل دي رسیدونکي دي تر یاره! ایسار نه‌شي
منصوردي له ځان جوړکه اوپروا دهیڅ چامکړه
دي لاره باندي لار شه آن تر داره! ایسار نه‌شي

سکروټوباندي گام اخله لمبي دي له ځان تاو که
په سرو اورو کي گډ شه په انگاره! ایسارنه‌شي

زړگي دي مطمئین کړه او توکل دي په الله کړه
اغزني لاري مخ ته وړه دلداره! ایسار نه‌شي

له ژوند نه دي تیریگه او له مرگ سره جنگیگه
چي سوگ دي وارخطانکري له ډاره! ایسار نه شي

تیاربه وي تورتم به وي منزل به درنه ورک وي
ډیوه درسره واخله په دي لاره! ایسار نشی

دعاوي لارویه جهادي! دي درته کري
سبحان درسره مل شه تر دیاره! ایسار نه شي

## غزل

هاشم سادات

ستا د لارې رهنما یم ، خو تا نه یم پیژندلی
زه کلام د پاک الله یم، خو تا نه یم پیژندلی

چا چې ته یې پیدا کړی څوک چې ستا د ژوند مالک دی
رالیږلی هغه چا یم خو ، خو تا نه یم پیژندلی

زه له غیرو گیله نکړم خو لتا مې گیله کیږي
د ژوندون ملگری ستا یم، خو تا نه یم پیژندلی

رب یم تاته رالیږلی یم رهبر دې په سفر کې
ستا د هر مرض دوا یم ، خو تا نه یم پیژندلی

پدې سترې دنیاگۍ کې د وحشت تورو تیارو کې
ستا ملگری ستا خیرخوا یم، خو تا نه یم پیژندلی

هغه ځای د تنهایۍ کې او د قبر په تیارو کې
زه تسل یمه رښا یم ، خو تا نه یم پیژندلی

شپه او ورځ مې تلاوت کړه اې ،هاشمه، راته گوره
مینه مینه یم ښکلا یم، خو تا نه یم پیژندلی

پشتون گر گل است، تاجیک بلبل است
ازبک شاخ گل است، هزاره سنبل است
پشه ای ساقه است، ترکمن خو دل است
هر کس تعصب کند، نادان جاهل است!



# دبېلتون چيغه!

د چا د ليونو سترگو تصوير مې په زړه پروت دی
د يار د ياد کړی کړی ځنځير مې په زړه پروت دی

مريد يمه د مينې، د ښکلا په پلو تړل يم
ځنگېږمه خمار يم لاس د پير مې په زړه پروت دی

يه وخته! څه غاټول او گلابونه را نه بېل شول
يه وخته! دجانان د بېلتون وير مې په زړه پروت دی

د وران افغانستان په کوم پرهر درمل کړم پورې؟
انځور د ځوانيمرگ شهيد پامير مې په زړه پروت دی

په نه څه يې دعوه د فرعونيت د ړنگېدو کړه
کلام د يو ملنگ غونډې اميرمې په زړه پروت دی

غزل کې به مې خود راځي شکرې شفاعته!
د يار د شاتو تورو دروند تاثير مې په زړه پروت دی

## شعر

خواهرم جای تو در بازار نیست...
خواهرم والله حجاب دشوار نیست..

خواهرم هرگز نزد نامحرم نشین...
چون شود شیطان بتو یار و قرین

آسیه و عایشه و مریمی...
دور شو از چشم هر نامحرمی..

خواهرم آرایش تو عفت است..
هر که با عفت بود، در جنت است..

بدانی قدر خود، تو گوهری..
ارزشت بالاست، چو در خود بنگری..

خواهرم در یک کلام، در هر زمان..
با حجاب و با حیا باش بمان..

# غزل

د چا د ليونو سترگو تصوير مې په زړه پروت دی
د يار د ياد کړی کړی ځنځير مې په زړه پروت دی

مريد يمه د مينې، د ښکلا په پلو تړل يم
ځنگېږمه خمار يم لاس د پير مې په زړه پروت دی

يه وخته! څه غاټول او گلابونه را نه بېل شول
يه وخته! دجانان د بېلتون وير مې په زړه پروت دی

د وران افغانستان په کوم پرهر درمل کړم پورې؟
انځور د ځوانيمرگ شهيد پامير مې په زړه پروت دی

په نه څه يې دعوه د فرعونيت د ړنگېدو کړه
کلام د يو ملنگ غونډې اميرمې په زړه پروت دی

غزل کې به مې خود راځي شکرې شفاعته!
د يار د شاتو تورو دروند تاثير مې په زړه پروت دی



# افراط او تفریط

## د اسلام له نظره

استاد (همت)

الله تعالی د بقری سورت په ۱۴۳ آیت کې داسې فرمایلی ترجمه: (همدا شان مونږ تاسې منځنۍ امت ګرځولې یاست محترمو لوستونکو! دا یو څرګند او منلی حقیقت دی چې د اسلام مقدس دین او د محمدي شریعت د افراط او تفریط ترمنځ معتدل دین دی نه پکې د نصاراو په شان افراط شته چې عیسی علیه السلام یې د الوهیت درجې ته رسولی او نه پکې د یهودو غوندې تفریط شته چې د پیغمبرانو په وژلویې هم صرفه نه ده کړې فلهذا ټول مسلمانان خصوصاً ځوانان باید د وسط او اعتدال په ګاڼه ځانونه سمبال کړي مسلمانان باید د ظالمو چارواکو او یرغلګرو ښکېلاکګرو یا اشغالګرو ښکېلاکګرو بهرنیانو په مقابل کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم خلفاء راشدینو او اصحابو کرامو تګ لاره او سیاست غوره او خپل کړي او د هغوی په نقش قدم باندې روان شي، محترمو مسلمانانو په اسلامي هیوادونو کې د چارواکو مختلف ظلمونه او د خلکو حقونه خوړل د افراط او تشدد ستر لامل دی. دا هم یو منلی حقیقت دی چې لویدیز په اسلامي نړۍ کې د افراط او تفریط زیاتولو هڅې کوي په افرادو او ډلو کې د افراط او تفریط تخم کري فلهذا مسلمانان باید تر نورو وړاندې دې ستونزې ته پاملرنه او توجه وکړي او د مخنیوي لپاره یې معقولې لارې چارې ولټوي ځکه د دغو ناروغیوتر ټولو زیات نقصان مسلمانانو او ګټه یې د اسلام دښمنانو ته رسیږي. قدرمنو لوستونکو! د اسلام دښمنان خو افراط او تفریط په اسلام کې پخوانی خبره بولي خو په حقیقت کې اسلام له دواړو نه نفرت او کرکه لري اسلام د اعتدال دین دی اسلام په دې اړه څرګند حل او درملنه وړاندې کړې ده مونږ او تاسې باید د دې مسئلې د حل لپاره د خپل دین عقیدې، شریعت، اخلاقو، روایاتو، ارزښتونو او تاریخ ته مراجعه وکړو او د اسلام په رڼا کې پرې بحث وکړو نه د پردیو او د اسلام د دښمنانو د افکارو په رڼا او آینه کې لومړی باید پدې پوه شو چې افراط او تفریط څه شی دی ؟! ډیر کفري هیوادونه او د هغوی پلویان لکه کمونستان، لیبرالان او سیکولران په اسلامي هیوادونو کې هغو شیانو ته هم افراط وایې چې هغه هیڅکله افراط نه دی مثلا که مسلمانان په خپلو هیوادونو کې د اسلامي شریعت حاکمیت غواړي دا افراط نه دی بلکې دا یې مسئولیت، فریضه ، وجیبه او حق دی کله چې مسلمانان د ښکیلاکګرو د ظلم او تیري پر وړاندې مقاومت کوي دا هیڅکله افراط او تشدد نه دی کله چې د امربالمعروف او نهی عن المنکر د ژوندي کولو او ساتلو غوښتنه کوي او د فساد په ضد جګړه کوي دا افراط نه بلکې یو قانونی حق یې دی ، سره له دې چې ځینې ډلې او افراد دا کارونه هم افراط او تشدد بولي خو دا کسان یا په خپل اجتهاد کې تیروتلي دي او یا د اسلام د قسم خوړلو او مکارو دښمنانو تر تاثیر لاندې راغلی غواړی د اسلام حقیقی بڼه د خلکو تر نظره افراط او تشدد وښیي او نوی ځوان نسل تفریط ته راکش کړي الله تعالی دې دوی ته هدایت وکړي په حقیقت کې پورته ذکر شوي کارونه سرته رسول د هر مسلمان وجیبه او فریضه ده او د دې کارونو مقابل کې سکوت تفریط او ګناه ده چې کله کله مسلمان له ایمان څخه هم پرې خلاصیږي . ګرانو لوستونکو! په حقیقت کې د افراط او تفریط پر ضد ضروري ګامونه اخستل دا دي چې اسباب او عوامل یې له منځه یوړل شي او د دې اسبابو په سر کې د ښکیلاکګرو له خوا د اسلامي هیوادونو لاندې کول ، ځمکه او فضاء یې په اختیار کې لرل په ټولنه کې فساد او فحشاء خورول دا چې نن اسلامي نړۍ له دې ناوړه حالت سره مخ ده او د مسلمانانو د عقایدو ، شعایرو ، سپیڅلو اشخاصو او خاصو ځایونو سپکاوی او بې حرمتي کیږي دا هم دهغه چا له لوري کیږي چې په اسلامي هیوادو یې تیری کړئ دا چې د مسلمانانو طبیعي زیرمې او مالونه لوټ کیږي مظلوم مسلمانان په یو او بل نوم وژل کیږي، په زندانونو کې ساتل کیږي ، مسلمان ځوانان فساد او فحشاء ته هڅول کیږي نو ضرور به مسلمان ځوانان د همدې ظلمونو او تیریو له امله مقابلې ته اړ کیږي پدې وخت کې بیا مسلمانان د ښکیلاکګرو مقابلې ته را پورته کیږي

مقاومت پیلوي له دوی څخه به په خپلو کارونو کې کله کله افراط وشي چې اصلي لامل یې د ښکیلاک ظلمونه او شتون دی ترڅو چې په اسلامي هیوادونو کې ښکیلاکګر ځواکونه په پټو او ښکاره جګړو اخته وي په مقابل کې به یې د دفاع او ازادی مقاومت ضرور روان وي او دغه محال به په ځینو حالاتو کې افراط هم را منځته کیږي دا یوه طبیعي خبره ده.

محترمو لوستونکو! په اسلامي هیوادونو کې د واکمنو چارواکو لخوا په خپل ولس باندی استبداد، فساد ، ظلم او د هغوی مال او حق خوړل د دې لامل شوی چې په ځوانانو کې د افراط او تشدد روحیه پیداکړي ځکه چې کله ځوان نسل دا وګوري چې نظامونه یې له اسلام سره په جګړه اخته دي اسلامي شریعت د حاکمیت په ځای ځنډېږ ته شوی، خلک په وضعي قوانینو پریکړې کوي د مسلمانانو ضد ایتلافونو کې په بیلابیلو نومونو او دلایلو ګډون کوي د خپل ګران وطن ځمکه اوهوا د پردیو په اختیار کې ویني مسلمان ولس خصوصاً ځوانان چې دا وضعیت ګوري زړه کې یې اور بلیږي نو د دفاع احساس او د ظلم څخه د خلاصون فکر او جذبه ورسره پیدا کیږي د مقابلې او غچ اخستو لپاره راپورته کیږي دا یوائې د نظامونو په ضد نه بلکې هر څوک چې له دغه ډول کارونو سره اړیکې لري او دا نظامونه تقویه کوي ځوانان ترې کرکه کوي او دغه یاد کارونه ټول د دې لامل کیږي چې په ځوانانو کې د افراط فکر پیدا او تغذیه شي. ګرانو لوستونکو! که څوک غواړي چې دغه وضعیت سم شي باید په نظامونو او سیاسی وضعیت کې اصلاحات راشي د اولسونو غوښتنو ته درناوی وشي عدل او انصاف په ټولنه کې خپور شي ګوندونو ته د حقیقي ازادی لارې پرانستل شي که دا کارونه وشي نو ورو ورو به د افراط او تفریط فکر له ټولنې څخه ورک شي او ټولنه به د ارام او سکون ساه واخلي . قدرمنو لوستونکو! د افراط او تفریط اسباب و عوامل دا هم دي چې په اسلامي نړی کې د مسلمانانو د بې لاری کولو او له اسلام څخه د لرې کولو کوششونه کیږي همدارنګه له اسلامي تاریخ اخلاقو، ادابو، روایاتو، ارزښتونو او له اسلامي احکامو څخه ناخبري او یا ورسره دښمني ده او هم د افراط بل لامل دا دی چې څوک په اسلام صحیح عمل کوي نو هغوی ته سخت دریځه متشدد او افراطي ویل کیږي او یا هم اسلام سخت دریځه بولي او اوس خو د اسلامي فکر په

وړاندې منفي تبلیغات په ښکاره توګه کیږي خلک د الحاد او مرتدانو په شکل کې څرګندیږي او په څرګنده توګه په اسلام نیوکې کوي ډیر خلک د فرهنګیانو، لیبرالانو، کمونستانو ، دیمکراتانو سیکولرانو مدني ټولنو او داسې نورو نومونو لاندې په اسلام نیوکې کوي غربي موسسې او هیوادونه د دغو ناوړو افکارو هرکلی کوي ، د فعالیتونو زمینه ورته برابروي او دغه ډول خلک د اسلام خلاف هڅوي او مرستې ورسره کوي همدا ډول بې دینه خلک د خپل شهرت او نوم لپاره پر اسلام او مسلمانانو نیوکې او ملنډې د ځان حق او شهرت او غرب ته د رسیدو لنډه لار ګڼي، ګرانو لوستونکو! هغه څوک چې په اسلام ، قران کریم، احادیثو، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ، امهات المؤمنین ، صحابه کرامو او نورو اسلامي شعایرو او ارزښتونو نیوکې کوي هغوی تقدیر کیږي چې دا نور هم افراط ته لاره برابریږي دا هم یو حقیقت دی چې کفري هیوادونه په لوی لاس غواړي چې اسلامي ډلې او مسلمانان د تشدد اوافراط موقف خپل او ټینګ کړي خو دا هیڅکله پدې معنی نه شي کیدای چې دغه ډلې او افراد به د کفري هیوادو د ګټو لپاره کار کوي کفري هیوادونه غواړي چې داسې فضا را منځته شي چې د خپلو ګټو لپاره په مسلمانانو تورونه ولګوي مسلمانان بدنام او له خپلې داعیی او نصب العین څخه چې د خدای په ځمکه د خدای قانون نافذول دي) را وګرځوي او ټول اسلامي امت د غرب د غلامی کړی او ځنځیر په غاړه کې واچوي خو دا ارمان به ان شاء الله تعالی د خپلو اسلافو په شان له ځان سره ګورته وړي که د اسلام دښمنان په مادي لحاظ ډیر قوي دي خو رب العالمین قویتر او په هر څه عزیز او قادر دی دا هم یو څرګند حقیقت دی چې الله تعالی عادیان ، ثمودیان، فرعونیان ، نمرودیان، چنګیزیان، انګریزان، روسان او نور مغرور، مغرور ظالمان په کمزورو او ضعیفو مخلوقاتو تباه او برباد کړي ان شاء الله تعالی چې ننني مغرور یرغلګر به هم له ټولو اسلامي هیوادونو څخه ذلیل او سر ټیټي د تیښتې لار خپلوي په شرط د دې چې مونږ مسلمانان په صحیح توګه صحیح مسلمانان شو او د الله تعالی اوامر ومنو او له نواهیو څخه یې ډډه وکړو . وماذلک علی الله بعزیز،

وما علینا الا البلاغ ژوندی دې وي اسلام سر لوړي دې وي مسلمانان.

# د کابل جوړه شوې جرګې

# د اشغال تمدید وغوښت !!

لیکوال عبدالله احمدي

د مشورتي جرګې غړیو په خپل پرېکړه لیک کې ویلي چې طالبان دې جګړه بنده کړي، د ملت د استازو خبره دې واوري او له تاوتریخوالې دې لاس واخلي.

پوښتنه دلته ده ایا جګړه طالبانو پیل کړې ده؟ که طالبان له خپل لوري جګړه بنده کړي ایا د افغانستان په امنیت او سوکالۍ به مثبت تأثیر ولري؟ د ګډو ځواکونو

په وحشیانه چاپو کې د عامو ملکي افغانانو بې دریغه وژنه، د بندیانو په توګه له ځانونو سره وړل، د دیني اماکنو ورانول او وحشیانه بمبارۍ تاوتریخوالې دی او که د یرغلګرو په خلاف قانوني او شرعي مقاومت؟

د لومړۍ پوښتنې په ځواب کې باید ووایو چې د جګړې په پیل او شروع کې طالب جهت کاملا غیر مسؤله دی ځکه دلته جګړه امریکایانو د یو آزاد او خپلواک هیواد په حریم باندې په تیري کولو سره په غیر قانوني توګه پیل کړې ده، د طالب جوړه اداره او نظام یې چپه کړی دی نو بناء طالب د ملت په استازیتوب د وضعي او شرعي قوانینو په اساس د دفاع او له خپلې خاورې څخه د تجاوزګرو د شړلو مشروع حق لري. جګړه د طالب انتخاب نه وه بلکې ورباندې وتپل شوه او جګړې ته په لوی لاس مجبوره شو.

نو د مشورتي جرګې له غړیو څخه په احترامانه ډول سوال باید وشي چې تاسو باید د جګړې له پیلوونکو څخه د جګړې د بندولو غوښتنه کړې وای نه له محکوم او مظلوم جهت څخه که ریښتیا هم د جګړې خاتمه غواړئ ځکه ورته خبرو تیرو ۱۸ کالو کې کومه نتیجه نه ده ورکړې نو اوس یې هم نه ورکوي ځکه نن ورځ ټول خلک پوهیږي چې د جنګ او نا ارامیو لامل څوک او څه شی دی!

د دویم سوال په اړه به په لنډ ډول ووایم که فرضا طالبان د یرغلګرو په خلاف جګړه بنده هم کړي یو بل افغاني جهت به راپورته کیږي د بهرنیانو په خلاف به مبارزه کوي تر څو ګران هیواد د امریکایي یرغلګرو څخه خلاص شوی نه وي، نو د خارجیانو په موجودیت کې د جګړې بندول د افغانستان په امنیت او سوکالي هیڅ کوم مثبت تأثیر نشي لرلی ځکه اشغال ذاتا او طبعا د امنیت، پرمختګ او سوکالۍ په مخ کې خنډ دی څو پورې چې اشغال ته د پای ټکی نه وي ایښودل شوی هر ډول تحرکات د امنیت او سوکالۍ اړونده بې فایدې او د وخت ضیاع ده.

د دریم سوال په اړه باید ووایو چې ملت د جګړې له پیلوونکې جهت څخه د جنګ خاتمه غواړي، د اشغال پای او د امریکایي ځواکونو د وتلو غوښتنه کوي. دا راز ملت ۱۸ کاله د یرغل په خلاف مقاومت کړی د دې لپاره چې د اشغال نه خلاص په اسلامي نظام پوښلي افغانستان لرونکې شي په امریکایي جهت غږ کوي چې زر تر زره زموږ له هیواد څخه پښې سپکې کړئ.

ملت وایي زموږ استازې هغوی دي چاچې زموږ د دیني، انساني او ملي ارزښتونو څخه د خپل سر او مال په بیه دفاع کړې او لا هم لګیا دي د هغوی خبره زموږ خبره ده او هغوی هره پرېکړه زموږ د زړونو ترجماني او اواز دی.

هغه اداره او کسان چې د یرغل نه وروسته د یرغلګرو په مرسته واک ته رسیدلي او په افغان ولس باندې حاکم ګرځول شوي د دې مؤمن او مجاهد ملت نماینده ګي هیڅکله نشي کولی ځکه ملت د تاریخ په اوږدو کې د یرغل په خلاف قیام کړی د یرغلګرو او د هغوی د لاسپوڅو په وړاندې یې نه هیردونکې جګړې کړې نه یې اشغال منلی او نه یې هم د اشغال محصول منلی.

هغوی چې د اشغال په شتون کې زموږ په ملي عنعناتو پسخند او مسخرې کوي غواړي له دې لارې څخه ځان ته مشروعیت او رسمیت ورکړي، د اشغال

د بقـاء او خپـل واک د تمدیـد لپـاره د جرګو په نوم له خپلو کرایـه شـویو څېرو څخـه د ملت د اسـتازو پـه نـوم اسـتفاده کوي موږ ته د منلو وړ نه ده ځکه د ملت اساسـي او لـومړي غوښـتنه د هیـواد خپلـواکي او اسـتقلال دی چـې همـدا کسان یې د اخستلو توان او صلاحیت نلري آن چې په مخکې یې خنډ هم دي.

ویلی شو چې تاسو د ملت استازې نه یاست بلکې په مستقیم ډول د اشرف غنـي او پـه غیـر مسـتقیمه توګـه د امریکایانو استازې یاست ځکه هغه څه مو ویلي چې څه همدا دوه جهتونه وایې ځکه ملت د جګړې ریښتینی پای او د اشغال خاتمه غواړي خو مشورتي لویه جرګه بیا په غیر مستقیمه توګه د جګړې دوام او د اشغال تمدید.

د ګډو ځواکونو پـه وحشیانه چاپو کـې د عـامو ملکي افغانـانو بـې دریغـه وژنه، د بندیانو پـه توګـه لـه ځـانونو سـره وړل، د دیني اماکنو ورانـول او وحشـیانه بمباری تـاوتریخوالی دی نـه د یرغلګـرو په خلاف قانوني او شرعي مقاومت.

پـه داسـې حـال کـې چـې پـه ټـول پربکـړه لیـک کـې د افغـان ملـت یـوه غوښتنه هم نه ده ځـای شـوې او نـه بیـان شوې ده نو تاسو بیا په کوم دلیـل ځـانونـه د افغان ملت نماینده ګان معرفي کـوئ او جرګې ته د لویې او مشـورتي جرګـې نـوم ورکوئ؟

یو عبرت باید افغانـان واخلـي چـې استعمار هیڅکلـه د مسـتعمره هیـواد د ښېرازۍ پلان نلري او نـه هـم د استعمار په غیږ کې روزل شـوي، د هغـوی لخـوا واک تـه رسـول شـوي او د دوی لخـوا سفوټ شوي وګړي او حکومتونه د ملت د هوسـاینې، پرمختـګ او امنیت پـه غـم کې وي بلکې همـدا غـلام حکومتونـه او اشـخاص اسـتعمارګر د خپـل قـدرت د بقـاء او اهـدافو د تحقـق لپـاره د الې پـه څېـر اسـتعمالوي او بـس او دوی یعنـي همـدا ایجنټـې څېـرې د خپلـو شخصـي منفعتونو پـه خـاطر کلـه د یـو یرغلګـر او کله د بـل یرغلګـر پـه غیـږ کـې نـاڅې او خپلې شوړې وهي.

څېړنـې پـه ډاګـه کـوي چـې همـدا جرګـه د امریکایـانو پـه اشـاره بانـدې راغوښتل شوې وه ځکه ټول هغه جهتونه چې ملت د اشغال پای غواړي او په .

په افغانستان کې د امریکا د ناکـامۍ پـه اړه ظـالم حقیقتونـه چـې د درواغـو خبرونو پواسطه پټیږي:

پرمختللـي هېوادونـه حتـی داسـې حقایق هم را څېړي چې په وروسته پاتې هېوادونو کې اشاره کول ورته د لیکوال د مرګ او تهدید سبب کیږي. بیخې جالـب حقـایق چـې لیکـوال ورتـه د ( ظـالمو حقایقو)  نـوم ورکـوي لانـدې لیکنـه کې رابرسیره شوي دي. د امریکـا اتلس کلن ماموریت یې افغانستان کې ناکـام ګڼلی، دلایل یې:

- اتلس کاله وروسته هم افغانسـتان پـه نړۍ کـې د مخدره توکـو تـر ټولـو ډېـر تولیدونکی هېواد دی.

- اتلــس کالــه وروســته هــم د افغانستان د نظامـي ځواکونـو تلفـات تـر هر بل وخت زیـات دي، روان کـال کـې، په تلفاتو کې ۳۰٪ زیاتوالی راغلی.

اتلس کاله وروسته امریکـا د افغـان هوایي ځـواک روزنـه ځکـه ودرولـه چـې ۴۰٪ سلنه روزل شوي پیلوټان/ پرسـونل یې له هېواده تښتیدلي دي.

- اتلــس کالــه وروســـته هــم د افغانسـتان اقتصـادي پرمختـګ کـې کـوم ځـانګړی بـدلون نـدی راغلـی - غربت، بیکاري په کـې لـوړه ده. یـوازې تېـر کـال افغانستان پـه صـادراتو کـې د یـو بیلیـون ډالرو کمښت راغلی دی.

- اتلـس کالـه وروسـته لا هـم پـه افغان حکومت کې مالي/ اداري فسـاد پـه اوج کې دی، غله حکومت کوي.

- اتلس کاله وروسته هم د افغـان د جګړې د ګټلو هـیڅ څـرک نـه تـر سـترګو کیږي ځکه امریکا د وتلو د پاره د سـولې ډنډوره په مخ وړي چې ټرمپ بـه پـرې د نوبل مډال ګټلو ته نوماند شي.

- اتلس کاله وروسته امریکـا افغـان حکومت له نظره غورځولی او له طالبـانو سـره خپلـه  مخـامخ خبـرې کـوي ځکـه امریکا ته نور افغانستان لومړیتوب نه دی بلکې ترې وتل ورته لومړیتوب دی.

مبـارزو ځوانـانو  - د ګـران وطـن سـاتل، سـوله او ټیکـاو زمـوږ لومړیتـوب دی،  دې مبـارزې تـه بایـد لومړیتـوب ووایو، جګړې ته (نه) او سولې ته هرکلی موږ له موجوده ذلت څخه ژغورلی شي.

د تـاریخ د تکـرار مخنیـوی پـه کـار دی!





# د دوحې مذاکرات

## کوم لورته روان دي...!؟

ليکوال: نعمت ميوند

د رواني ميلادي/ مئ مياشتې پر لومړۍ نېټه د قطر پلازمېنه دوحه کې د امريکايي او طالب پلاوي ترمنځ د شپږم پړاؤ خبري اترې په داسي حال کې پيل شوي، چې تر وړاندي يې يو بل ته اخطاري ټويټونه هم سره تبادله شول، خليل زاد وليکل، طالبان بايد وسلې پرځمکه کښېږدي. ذبيح الله مجاهد يې په ځواب کې وليکل، خليلزاد دې له دې خوبونو تير شي، طالبان وسلې ايښودلو ته تيار نه دي، په وينا يې د دې غوښتنې پرځای دې خليل زاد، امريکا د خپلو ځواکونو ايستلو ته قانع کړي. چې بيا يې په ځواب کې خليلزاد نرم ټويټ وکړ او ويې ليکل، امريکا هم د سولې لپاره وسلې ايښودلو ته تياره ده.

نن مازگر د مئ مياشتې پر ۹مه نيټه ذبيح الله مجاهد د يوې اعلاميې په خپرولو سره خبر ورکړ چې د شپږم پړاؤ دا مذاکراتي مجلس پای ته ورسيد. نوموړي خوشبيني ښودلې وه چې گويا پر دوو مهمو موضوعگانو چې يو يې د امريکايي سرتيرو ايستل او بل د افغانستان د خاورې د بل چا پر ضد نه کاريدل دي؛ پرمختگ کړی دی.

دا چې دا پروسه اوس کوم لور ته روانه ده؛ او ولې دومره وروسته او مخ ته کيږي؛ په داسي حال کې چې هيوادوال ځومره ورته تږي دي؛ په اړه به يې د ځنډ او خنډ ځو عوامل د ترلاسه شويو مالوماتو په رڼا کې درسره شريک کړم:

### د ځنډ او خنډ عوامل يې:

څرنگه چې دا مذاکرات د بندو دروازو ترشا روان دي، په اړه يې هيڅوک مالومات نلري، د رسنيو له لاري فقط دومره خبريږي چې د مذاکراتو بل پړاؤ پيل شو او بل پړاؤ يې پای ته ورسيد. خبري وخت ډېر اخلي خو پرمختگ پکي لږ ترسترگو کيږي، د دې ځو عوامل کيدای شي:

۱ - طالبان لکه څنگه چې په جگړه کې پرشا تگ نه مني، داسي ښکاري چې په سياسي ډگر کې يې هم نړيوالو ته روښانه کړه چې له خپل موقف نه به هيڅکله شا ته نشي. په داسي حال کې چې امريکا غواړي ځان ته يوه داسي د اوړو پوزه جوړه کړي چې نړيوال ورته "ماتې خوړلې امريکا" ونه وايي. همدا لامل دی چې مذاکراتي مجالسو طول پيدا کړ.

۲ـ د طالب او امريکا ترمنځ مذاکرات داسې نه دي لکه د حاکم او محکوم، چې تنها د زورور خبره به منله کيږي، د کابل حکومت او امريکا ترمنځ هم د امنيتي تړون پرسر خبرې وشوې، خو هغه څه پکې لاسليک شول، څه چې يوازې امريکا ليکلي وو، د کابل ادارې ته يې نه وخت ورکړ او نه يې د نظر څرگندولو اجازه. مگر له طالب سره د خبرو اترو مسئله کاملاً متفاوته ده، ځکه يې پرمختگ ورو دی.

۳ - دا چې طالبان له يوې خوا د خپلو اسلامي ارزښتونو او ملي منافعو په رڼا کې پريکړې کوي، خو بل پلو د امريکا او نړيوالې ټولنې له نورمونو سره د ټکرونو د مخنيوی په لټه کې هم دي، چې دا نو يوې منځنۍ لارې ته اړتيا لري او دا منځنۍ لاره را ايستل آسان او د لږ وخت کار نه بريښي.

٤ - بله مهمه خبره دا ده چې مذاکراتي لوري که څه هم هر څومره واکمن او باصلاحيته وي، خو بيا هم مجبور دي چې وخت په وخت خپل پرمختگونه او چيلنجونه له خپلو مشرانو او اړونده مراجعو سره شريک کړي او له هغوی نه هدايات ترلاسه کړي.

۵ - له دې نه پرته داسې ټکي هم شته چې طرفينو ته سره خطونه دي، مثلا: طالبان دا نه مني چې د ترهگر يا ټروريست ټکی، چې تراوسه يې ټول منلی تعريف نه دی

شوی؛ په مسوده کی په همدې نامه ځای کړي، هو د يوې معلومې ډلې نوم اخيستلای او په اړه يې د شرعي اصولو په رڼا کې موقف اعلانولای شي، خو طالبان وايي چې په دې اړه د امريکا خود ساخته تعبيرات نشي منلای.

٦- طالب لوری هڅه کوي چې داسې څه په مسوده کې ځای کړي چې په راتلونکې کې هم د امريکا د مداخلې مخه ډب کړي. د طالبانو يوې سرچينې وويل: چې دغې مسئلې له مور نه ډېر وخت واخيست چې په جانب مقابل باندې په مسوده کې دا ډول عبارات ومنو.

٧ - دا چې راتلونکی نظام به اسلامي وي، په کوم او د چا په تعبير؟! دا هم هغه مسئله وه چې د وخت اخيستلو سبب شوه.

٨ - له امريکايي لوري سره په مسوده کې په شد او مد دا خبره ځايول چې د دوی ټول ائتلافيان، اتحاديان او قرار داديان، به د مسودې پابند وي، د طالب سرچينې په وينا دا د امريکايي لوري لپاره ترټولو ستر کار و چې ډېر وخت يې ونيو، ځکه چې امريکا هم مجبوره وه ترڅو خپل ائتلافيان په اعتماد کې کړي، او وکالت ترې واخلي چې په همدې موخه يې ډېري دروازې وټکولې.

٩- د مذاکراتي پروسې نه باخبري سرچينې وويل، چې ترټولو مهمه خبره د امارت نوم و چې دا د امريکايي لوري لپاره خورا تريخ غړپ و چې بالآخره يې مجبورًا ومانه، البته په پوښ کې.

١٠ - په مجموع کې يو قانوني لاسوند او مسوده تيارول او د عمل ميدان ته را ايستل، او بيا يې بند پر بند له خپل سرسخت جانب مقابل سره چني وهل؛ طبعاً د ورځو يا اونيو نه؛ بلکې د مياشتو مياشتو کار دی.

## د کتونکو ارزونه:

ځينې کتونکي فکر کوي چې د مذاکراتي پروسې د ځنډ او ځنډ علت دا هم دی چې امريکايان د مذاکراتو تر څنګ يوه بله نا اعلان شوې ستراتيژي هم پرمخ وړي، هغه داچې دوی هڅه کوي چې د شديد بمبار، شپنيو چاپو او وحشت له لارې يا خو طالبان د سنګرونو څخه پر شا کړي او يا يې هم د مذاکراتو پر ميز تر فشار لاندې ونيسي.

خو د کتونکو له نظره دا کار ځکه غير منتج ثابت شوی چې د دې لپاره هم امريکا د ټرمپ د وروستۍ جنګي ستراتيژۍ په سلسله کې يو ضرب الاجل ټاکلی و چې په هغه ټاکلي وخت کې يې هيڅ کومه ملموسه نتيجه ترلاسه نه کړای شوه، نه يې طالبان له سنګرونو شاته کړل او نه يې د مذاکرې پر ميز تر داسې اغيز لاندې راوستل چې خپلو غوښتنو منلو ته يې اړ کاندي،

برعکس د دغه وحشت له امله هم په نړيواله کچه او هم په کورنۍ برخه کې له فشارونو سره مخ شول، په مخالفت کې يې د اکثريت رغونه راپورته شول، په افغان ولس کې کرکه نوره هم ورسره سوا شوه، او په مقابل کې يې جهادي مقاومت په اوتومات شکل، نور هم د ولسي ـ ملاتړ له پلوه غښتلی شو، نو د دغه ځرګند تاوان له کبله امريکايي چارواکي اوس مجبور دي چې د مسئلې اصلي او چټک حل ته به هرومرو غاړه ږدي.

ځکه چې نور د بې ګټې نظامي فشار لپاره مالي او ځاني مصارف کول بيځايه هڅه ده، او چټک حل ته به يې ځکه ترجيح ورکړي چې امريکا نوري نړۍ ته ځان داسې نشي ښودلای چې ګويا د امريکا په اند د (طالب) په شان يو کمزوري جهت سره په مياشتو مياشتو توافق ته نشي رسيدلای.

نو دې ته په کتو سړی ويلای شي چې ښايي امريکايان نور د وحشت له دغه آپشن نه تېر شي، کوم چې يې د ضمني ستراتيژۍ په بڼه د مذاکراتو ترڅنګ روان کړی و، او د مذاکراتي پروسې د ځنډ يو بل عامل ګرځيدلی و.

له همدې ځايه ده چې د مذاکرې د شپږم پړاو له پای ته رسيدو څخه طرفين خوشبيني ځرګندوي که څه هم د مذاکراتو په جزياتو د نا خبرتيا له امله په ولس کې يو ډول مايوسي محسوسيږي.

پای.......!




# د ثور ۴مه؛

## د یوه افسانوي شخصیت د رحلت ورځ

م ـ اوریاخیل

داسې مشر چې د شوري ښکېلاک مقابلې ته تش لاس، لوڅې پښې او لوړې ایماني جذبې سره را و وت. په خپله سیمه کې د ټانګونو غښتلی نښه ویشتونکی. یوه سترګه یې د وطن ارزښتونو په ننګ له لاسه ورکړه.

کله چې روسان و وتل، بېرته خپل فقیر ژوند ته ستون شو. یوه مدرسه کې یې خپلو نیمګړو درسونو اتمام ته ګونډه و وهله. روسان و وتل، مګر اسلامي نظام، عدالت او وطن ته خوښي رانغله. یو څو تنو د قدرت لپاره د یو بل ګرېوانونه وڅیرل. په دغه انډوخر کې ډېرې باعفته پېغلې بېعفته شوې. نظام د یو څو تنو اجیرو لخوا چور شو. کابل او نور لوی ښارونه په بل مخ واوښتل.

د خلکو له کورو مېړوښه ښځې قومندانانو یوړې. له هلکانو سره یې نکاح وتړلې. د واده او ورا د لوی کاروان مخکې به یې شاه په ډزو و ویشت او ناوې به یو څو پاټکیانو له ځانه سره یوړه.

کابل کې عملا اووه حکومتونه ول. هر حزب خپله پاچاهي او خپلې چاپ کړې روپۍ درلودې. د شمال په دروازو "به سرزمین خراسان خوش امدید" لیکل شوي وو.

نظام ختم وو. وطن تجزیه وو. په ټول وطن د شغالانو پاچاهي وه او د یوه زمري ملت په سر، مال او ناموس تالا ګډه وه. همدا علتونه ول چې یو دنګ قامتی ملا په توره ږیره مدرسه په مدرسه په طالب او ملایانو ګرځي. هغوی ته سر سرتوروي، لمن غوړوي او د وطن د پېغلو او عزت ګټلو چیغه پورته کوي. له څو مخلصو ملګرو سره په موټر سایکل سپور ټولې مدرسې او منبرونه لټوي.

له څو محدودو ځوانانو سره په پاټکیانو برید کوي. د وحشت، بربریت، زنا، لواطت او غلا شګلین پاټکونه یو په یو له منځه وړي او یو وخت چې شاته ګوري نو د سپین مخو سپین پاجو د امامت یو لښکر ور پسې اقتدا کړې وي.

په یوه ترپ د هغه کابل دروازو ته رسي چې هلته شهیدې ناهیدې د عفت ساتلو لپاره ځان و واژه. د مکروریانو د بلاکونو له پنځم پوړ نه یو څو پېغلو د عزت ساتلو لپاره ځانونه را وغورځول. له ښځو طیونه پرې کېدل. ژوندي انسانان په جوش غوړیو ډوبېدل او بیا د رقص مرده مشهورې نڅا ته سګرتي او د شرابو پیالې کړنګېدې. د ځوانانو، ماشومانو او سپینږیرو په سرونو میخونه ټک وهل کېدل...

د کابل زرین اسمان تورو لگو په سر اخیستی وو. یوه ویرونکې تیاره خوره وه.

دغه ناهیلي حالت کې یوه سپینه رڼا راڅي.

د ازادۍ امام د کابل په جنتي ایره شویو واټونو د امن، سولې او عزت سپین بیرغ رپوي.

د ټول وطن شمال څنډې له جنوب او شرق یې له غرب سره پیوند کړ. وړې باغي پاچاهۍ تارو مار شوې. ملک الطوایفي ته د پای ټکی کېښودل شو. په هغه ښار کې به چې چا څوان لغړ زنی زوی د ورځې نشوای گرځولای؛ د یوه دنگ قامتي په امامت او عدالت کې به د شپې له پیسو ډکو بوجیو ته لاس نه ور وړل کېده. د شپې لخوا به چا د کور دروازو ته قفل نه اچوه، ځکه باوري ول چې امیر او امام یې حفاظت لپاره ویښ ناست دی.

دا ټول معجزه ډوله پېښې د یو داسې فقیر طبعیته زیړ پښتون په امامت او حاکمیت کې شوي چې د الفاظو له لحاظه تر هر چا کمزوری. د علمي ډگري په لحاظ تر ډیرو وروسته او ملایانو کې تر ټولو ادنا ملا وو.

مگر سیاسي شعور، قوي لیډرشیپ، ازادي، ملت پالنې او ایماني جذبې په لحاظ غر غونډې انسان وو. قاطعیت، سپېځلتیا، تقوا او مردانه دریځ په لحاظ ورته عرب او عجب، مخالف او موافق، ملا او امي، لوستی او نالوستی ټول په تمامه مانا قایل وو. دا تور ږیری، دنگ قامتي، خړ لباسه او وسپنیز سړی ملا محمد عمر مجاهد نومېد.

هغه څوک چې یو وخت یې د تایم نومې مجلې په لومړي مخ؛ تصویر سره لیکل شوي وو چې "وروستۍ ورځې"؛ خو د خدای خوښه بیا بل څه وه او اوس یې د لیکوالو خپلې وروستۍ ورځې شوې. (م - مبصر)



# کټورې اصلاحي او عالمانه ویناوي

## # غرور

غرور او لویي د عقل لپاره یو افت دی.

لوی مې کړې لویي را مه کړې.

له متکبرینو سره تکبر او لویي کول صدقه ده.

## # انتقام

انتقام د وحشیانه انصاف دوهم نوم دی.

څوک چې انتقام نه اخلي هغه په ډېرو درجو له خپل دښمن ښه غوره او بهتر وي.

څوک چې د انتقام جذبه په زړه کې لري هغه په خپل لاس خپل زړه زخمي کوي.

_ په انتقام اخیستنه کې تلوار کول انتهايي رذالت دی.

## # ظلم

د ظالم او تیري کوونکي په مرگ خپکان څرگندول هم ظلم او تیری دی.

د مظلوم له ښیرا څخه ځان وژغورئ ځکه هغه د اور د شغلې په شان د اسمان لور ته پورته کیږي.

د ظالمانو بخښل په مظلومانو تېری دی.

## # ساز او موسیقي

ساز او سندري د روح غذا نه بلکې د زړه او روح وژل دي

د سندرو پیل د شیطان لخوا دی، پای او عاقبت یې د الله تعالی قهر او غصه ده

زما له امت څخه به خامخا داسې قومونه وي چې زنا، وریښم، شراب، سندري او د موسیقۍ الات به حلال گڼي

حضرت محمد ' صلی الله علیه وسلم

الله دې لومړی ما او وریسې تا لوستونکي ته د عمل کولو توفیق راکړي

# د مسافر شهید عجیب کرامت



م عبدالله

دوه ورځې وړاندې په میدان ښار ـ جلریز ولسوالۍ کې درې جوړه ملګري شهیدان شول چې یو پکې دغه تنکی ځوان چې په ابابیل یې شهرت درلود د ننګرهار ولایت اوسیدونکی و.

ابابیل له کلونو راهیسې له خپلو میدانیو ملګرو سره په مرکز میدان ښار او جلریز ولسوالۍ کې په جهادي خدمت بوخت و.

ابابیل دوه ورځې وړاندې له شهید شریف الله زبیر سره په داسې حال کې یو ځای شهید شو چې له خپلې مور، خپل پلار، خویندو او ورونو نه لرې په میدان ښار جلریز ولسوالۍ کې مسافر و، کله چې شهید شو کورنۍ یې نه وه، پلار یې نه وو، مور یې نه وه، خور یې نه وه د کور کلي خپل او خپلوان یې هېڅوک نه ول.

هو! د شهید ابابیل جنازه همداسې بې یاره او بې دیاره په میدان کې خاورو ته وسپارل شوه،

نن یې یوه بیله او عجیبه او سپېڅلې ننداره وه، نن یې پلار جان د خپل ځوی دیدار ته له ننګرهاره راغی، تر څو خپل شهید بچي ووینې، تر څو د خپل شهید بچي په لیدلو زړګی ټکور کړي ـ ملګرو ورته د خپل ملګري مسافر شهید قبر وسپاره، کله یې چې د سر تیګه ایسته کړه د پلار یې د ځوی په لیدو له سترګو بې بها اوښکې وبهیدې، داسې یې وژړل چې ټولو ملګرو ورسره وژړل خو!

خو عجیبه دا وه چې کله د شهید د پلار له سترګو اوښکې روانې شوې د مسافر شهید سترګې هم ډنډ شوې او د پلار په خبر یې له سترګو اوښکې لاړې.

سبحان الله دا د شهید ژوندی کرامت دی، دا د شهید حقانیت دی، هو دا د طالبانو د یو ستر حقانیت نښه ده.

الله تعالی دې د ټولو شهیدانو وینې په خپل دربار کې قبولې کړي. اللهم امین.



# د اشغال ترسیوري لاندې

# د نشه يي توکو په اړه وروستي ورکړل شوي ارقام

احمد مختار

د ملګرو ملتونو د نشه يي توکو څانګې (UNODC) د رپوټ له مخې په تیر ۲۰۱۸ کال کې په افغانستان کې ۷۲۰۰ ټنه افیون تولید شوي.

له یادو افیونو څخه افغان کروند ګرو، نیش ګرو او قاچاقبرو ته ۶۰۰ملیون ډالره په لاس ورغلي دي.

د افغانستان ګاونډ په مجموع کې ۱۴۰۰افیونو ته اړتیا لري.

ـ هغه افیون چې د افغانستان په داخل کې په هیرینو باندې بدلیږي ۶۱۰ ټنه دي چې له هغو ۳۰۰ ټنه ٪۱۰۰ خالص هیرویین جوړیږي.

د نشه یي توکو د ماهرینو د معلوماتو پر اساس له همدې ۶۱۰ تنه څخه ۱۵۰۰۰ټنه هیرویین جوړیدای شي خو دا چې له همدې افیونو څخه یې ډیره برخه د ناسم انتقال او کارولو له امله تلف کیږي او یا هم کله ناکله د عملیاتو په مهال ظبط کیږي نو ځکه یې د خالص تولید کچه هم را ټیټیږي.

ـ په افغانستان کې د نشه يي توکو د تولید په اړه د ملګرو ملتونو احصایي تر ډیره غیر دقیقې او د امریکایي مصالحو پر محور څرخیږي.

ځکه د روسي احصائیو له مخې په تیر۲۰۱۸ کال کې د افغانستان د افیونو تولید ۱۰۰۰۰ ټنه ښودل شوی دی.

ـ د افغانستان له افیونو څخه امریکایي مالي عوائد

د افغانستان له نشه يي توکو څخه د امریکایي مالي عوائدو په اړه دقیق ارقام په لاس کې نسته، خو د نړیوالو او غربي رسنیو له لوري د ورکړل شویو ارقامو له مخې له افغاني مخدراتو څخه د امریکا کلنی عائد ۶۰ملیارده ډالره ښودل شوی.

ـ په ۱۹۹۷ کال کې د اسلامي امارت لخوا د کوکنارو په کښت باندې تربندیز وړاندې د همدې رسنیو لخوا د افغانستان له نشه يي توکو څخه امریکايي کلنی عائد ۶۰۰ ملیارده ډالره اټکل شوی و.

خو پر افغانستان باندې تر امریکایي یرغل او د هغه په سیوري کې د کوکنارو تر بې کنټروله کښت وروسته چې افغانستان په نړیواله کچه د نشه يي توکو په تولید کې نړیوال ریکارډ خپل کړی له هغو څخه د امریکا کلنی عائد تر ۱۰۰۰ ملیارده هم زیات بلل شوی.

ځکه اوس هغه سیمې چې مخکې به یې یو فصل کوکنار کول اوس د امریکایانو لخوا د خاصو تخمونو راولو له امله څلور فصله کوي، او بیا هغه د امریکایانو تر مستقیم اشراف لاندې د پر مختللیو وسائلو او سامان آلاتو په زریعه په هیرینو بدلیږي او همدا راز د هغوی د خاصو الوتکو په وسیله نورې نړۍ ته قاچاق او لیږدول کیږي.

- اوس مهال په مجموعي ډول په نړیواله کچه د نشه يي توکو په تجارت کې څلور زره ملیارده ډالره ښکته پورته کیږي چې له دې څخه تر ټولو زیاته ګټه د امریکا متحده ایالات ترلاسه کوي.

### د مخدره توکو په تولید کې ښکیل جهتونه.

سره له دې چې د کابل رژیم په دولتي تشکیل کې د مخدره توکو د کنټرول لپاره یو مستقل وزارت شتون لري، پر

هغه علاوه د ملګرو ملتونو د نشه يي موادو د کنټرول اداره او متعدد شمير نور سازمانونه هم په افغانستان کې د مخدره موادو د کنټرول په برخه کې فعاليت کوي، خو بيا هم ليدل کيږي چې ورځ تر بلې په هيواد کې د مخدره توکو د توليد ګراف مخ په لوړيدو دی.

د کابل رژيم د پارلماني چارواکو په اعتراف په افغانستان کې د نشه يي توکو په توليد، پروسس او ترافيک (انتقال) کې بهرني ځواکونه او د کابل رژيم لوړ پوړي چارواکي او پوليس ښکيل دي.

د دې ادعاء د اثبات لپاره کافي اسناد او شواهد موجود او ډير ځله خپله دولتي چارواکو له محلي رسنيو سره د نظر څرګندولو پر مهال ورباندې اعتراف کړی دی..

**د نشه يي توکو د کنټرول په پلمه تعين شوې بوديجه.**

په افغانستان کې د کابل رژيم د مخدره موادو وزارت او د بهرنيو مؤسسو لخوا د مخدره توکو د کنټرول لپاره کلنۍ بودجه ۱۴ مليون ډالره مصرفيږي، خو د دومره لوړ مقدار مصرف له لګښت سره سره په هرکال کې د نشه يي توکو د توليد کچه لوړيږي، معتادان يې زياتيږي او د کوکنارو د کښت مساحت پراخيږي.

د نړيوالو سازمانونو لخوا د ورکړل شويو رپوټونو په حواله اوس د مخدره موادو د معتادينو شميره ترکليوالو سيمو په ښاري سيمو کې ډيره لوړه ده، تر دې چې خپله د دولتي افرادو او پوليسو په منځ کې معتادين ليدل کيږي.

د هيواد لوي ښارونه، د هغوی تفريحي پارکونه، تجارتي مارکيټونه او عمومي واټونه د نشه يي توکو د تجمع مراکز دي.

چې مونږ يې د بيلګې په توګه يواځې د افغانستان د تاريخي پلازميني کابل د پُل سوخته سيمي ځو هغه بورنوونکي انځورونه د غونډې له برخوالو سره شريکوو چې د ارګ له ولسمشريزې ماڼۍ څخه په څو متري واټن کې موقعيت لري.

**د مخدره توکو له پراختيا سره تړلې افتونه.**

دا چې په مخدره توکو معتاد کيدل خپله يو افت دی خو له هغه سره نور تړلي افتونه داسې ستونزې دي چې په مجموع کې يې افغان ولس او حتی د هغه ګاونډيان له سختو ستونزو سره مخ کړي دي.

همدا اوس د کابل رژيم د عامې روغتيا وزارت د ورکړل شويو ارقامو له مخې په هيواد کې د ايډز په ناروغۍ اخته ناروغانو شمير تر (۱۰۰۰۰) لوړ دی.

چې په دې سره د ځوانانو په منځ کې د نورو خطرناکو ناروغيو د سرايت او د هغوی په منځ کې د بيکارۍ پراخيدو او د مافيايي شبکو په لومو کې د هغوی د لويدو ټول احتمالات شوني دي.

پر دې سربيره د نشې پر مهلک اعتياد د مبتلا کيدو له وجې زمونږ درې مليونه افغانان د عادي ژوند له هرډول آسانتياو څخه بې برخې دي، هغوی د خپلې کورنۍ او په مجموع کې د خپلې ټولنې پر اوږو بار دي.

**د مخدره توکو د ستونزې ممکنه حل لاره.**

مخدره مواد يوه نړيواله ستونزه ده چې د ميلينونو انسانانو ژوند يې له سخت ګواښ سره مخ کړی دی.

په افغانستان کې که له يوې خوا د امريکايي يرغلګرو په لاس سلګونو زره افغانان شهيدانيږي.

له بلې خوا په ورته شان د هغو مخدره توکو په زريعه هم په لکونو افغانان متضرر دي چې د اشغال تر سيوري لاندې ورته د کښت، توليد، پراختيا او ترافيک زمينه مساعده ده.

پر بشري او مالي زيان سربيره مخدره توکې هغه بد مرغه پديده ده چې زمونږ پر ولس ډيرې منفي اغيزې لرلای شي.

نو د دې ناوړه پديدې مخنيوی فقط هماغه د اسلامي امارت د تاريخي فرمان په عملي کيدو سره ممکن دی چې هم يې افغانان له ضرر څخه خلاصيدای شي، هم د افغانستان ګاونډيان او هم په مجموع کې ټوله نړی.

اسلامي امارت لکه څرنګه چې د خپل حاکميت په مهال د دغې خطرناکې پديدې محوه کولو ته ژمن و اوس هم د اشغال د خاتمي او ګډوډې په ختميدو سره د نشه يي توکو د مخنيوي او کنټرول په اړه خپل هماغه فرمان ته متعهد دی.



# اشغالګر او حامیان یې په ګړوبیدو او ړژیدو دي!!

حافظ هجرت

د دار الامتحان يعنې د دنيا له پيدا کېدلو وروسته تر دې مهاله په دنيا کې د حق او باطل تـر مينځ بـې شـمېره معرکـې او جنجالونـه رامينځ ته شوي دي؛ خو تل باطل مغلوب شوی او حـق پـرې بـريمن شوی دی.

اهلِ حق (مسلمانانو) ته الله جـل جلالـه د تـل لپاره پـه داسـې وخت کې په اهلِ باطل (کافرانو) باندې غلبه ورکړې چې مسـلمانان د باطل په مقابل کـې د ماديـاتو او جنګـي وسـايلو لـه اړخـه ډيـر زيـات کمزوري؛ حتی چې د نيشت په حساب وي.

د ۱۹۷۹ ميلادي کال په ډيسمبر مياشت کې چې کله د روسيې دهريانو پـر افغانستان تجـاوز وکـړ او د افغانستان پـه خـاوره يـې د وحشت خپرولو او وينې تويولو بازار ګرم کړ نو د ځو کلونـو پـه اوږدو کې د حق د پلويانو (مسلمانانو) په لاس داسې ټوټه ټوټه شول او تـر دې حده مغلوب شول چې نه يواځې افغانستان بلکه د نړۍ يو شمېر نور هېوادونه هم ترې آزاد شول او دوي ترې د سرټيټۍ او شرمندګۍ په حالت کې ګوډ او مات بيرته روسيې ته ستانه شول.

بيا ورپسې چې کله په ۲۰۰۱ ميلادي کال کې د نړۍ ځـواکمن او با قدرته کفري هېوادونو د امريکا په مشرۍ پر افغانستان او همدا رنګه په نورو اسلامي هېوادونو باندې ډلييز يرغل وکړ؛ چې پـه تـرڅ کې يې لکونـه مسـلمانان پخپلـو هېوادونـو، ښـارونو او کليـو کـې پـه ډيرې بې رحمۍ سره په شهادت ورسول. لکونـه نـور يـې د (کيوبـا، ابوغريب او بګرام) په څېر په وحشتناکو زندانونو کې اسيران کړل، د مسـلمانانو ښـارونه يـې پخپلـو قـوي او مـاډرنو بمونـو، توپونـو او د بالسټيک او کروز په توغنديو سره ويجـاړ کـړل، د مسلمانانو طبعـي زېرمې يې چور او تالا کړې، د اسلامي هېوادونو په ګڼ شمېر معدني ذخائرو لکه (تيل، يورانيم، سيم او زرو) بانـدې يـې جبري او ناحقه قبضې واچولې او د هماغو تيلو او نورو قيمتي ذخائرو په پيسو يې په اسلامي هېوادونو باندې د جنګ ميدان ګرم کـړ او هـر لـور تـه يـې د ظلم، بربريت او وحشت فضا خپره کړه.

بوش چې ددغې بدنامې جګړې پيل کونکی سرلاری وو، دغـې جګړې تـه يـې د صليبي جګـړې نـوم ورکـړ او دا يـې د نصرانيت او اسلاميت ترمينځ فيصله کونکې جګړه وبلله.

او د نړۍ نورو هېوادونو ته يې په زغرده اعلان وکړ چې يا به د اسلام (ددوي په اصطلاح د تروريزم) پرخلاف جګړه کې له موږ سره يو کېږئ او يا به تاسو هم د تروريستانو په څېر له منځه وړل کېږئ يعنې مينځ کې يا په اصطلاح بې طرفه به نه پاتې کېږئ.

هماغه وو چې د پنځوسو خوا او شا ډارن او بزدلـه هېوادونـه چې په دې کـې ورسره د نـام نهـاده اسـلامي هيوادونـو پوځونـه هـم شامل وو په ګډه يـې د افغانسـتان پـه خـاوره بانـدې تيری وکـړ او د

موجود اسلامي نظام پرځای یې د غربیانو په لاس جوړ شوی سیکولر او لا دینه نظام د بمونو په زور تحمیل کړ.

دا ځل هم د تل په څېر د مسلمانانو مادیاتي اړخ د کفارو په پرتله ډېر زیات کمزوری او د نیشت په حساب وو؛ خو دا چې اسلام حق دین دی او له دې دین څخه دفاع کونکي انسانان هم برحقه دي او الله تبارک و تعالی هم یواځې د حق له ډلې سره ملتیا کوي او د باطل د پلویانو پرخلاف د حق پلویانو سره مرستې کوي: نو په همدې بناء د څو کلونو په تېرېدلو سره ورته د اسلام یعنې د (حق) رېښتیني



پلویانو د خدایٔ تعالی په ځانګړي نصرت داسې تاریخي او عبرتناک درسونه ورکړل چې د کفارو لخوا د اسلام او مسلمانانو پر خلاف له جګړې وړاندې جوړ شوي پلانونه، شعارونه، ستراتیژۍ او نور هغه مهم اهداف چې دوي یې د لاسته راوړلو په موخه کلونه کلونه غونډې او بیلا بیل مجلسونه کړي وو په بشپړ ډول یې ترې هېر او د هغوي ۲ سوه کلن زور او شور یې اوبه او د غرور ډکه امپراطوري یې ورته له زوال سره مخ کړه.

دا کومه پټه خبره یا پټ داستان نه دی، ټولې نړۍ یې ننداره وکړه چې د یهودو آله کاران (صلیبیان او اتحادیان) یې د مسلمانانو په سپېڅلي او مغروره خاوره (افغانستان) کې د یو څو فقیرانو او بې اسلحو ملنګانو په لاس مات مات او له جنګه ستړي او بېزاره شول او دېته اړ شول چې نور له افغانستانه د مذاکراتو /سولې په نوم خپلې خپې سپکې کړي.

پرته له شکه چې د اسلام او د کفر تر مینځ په دې خونړۍ معرکه کې له مسلمانانو سره راسخه عقیده، کامل ایمان او په الله تبارک وتعالی توکل او پوره یقین وو او دی؛ کنه د دنیاوي اصولو له مخې د صلیبي نړۍ له دغې مجهزو پوځونو؛ چې په ډول ډول عصري وسایلو لکه (ماډرن الوتکو، ماډرن ټانګونو، ماډرن توپونو او توغندیو) باندې تر سپېړمو سمبال دي، ددوي پر وړاندې په تش لاس په سپین میدان ودرېدل هسې لیونتوب دی.

بهر حال! په نظامي ډګر کې له ماتې خوړلو وروسته د باطل پلویان اوس په سیاسي ډګر کې هم د ماتېدو او شرمېدو په درشل کې دي.

که څه هم صلیبیان شپه او ورځ هڅې کوي چې په دې ډګر کې د خپلو فریبونو او مکرونو په توسط مسلمانان خطا کړي او په نظامي ډګر کې د خوړلي شکست انتقام ترې په دې (سیاسي) ډګر کې واخلي؛ خو مونږ د خپل رب په شویو وعدو باور لرو چې دلته به هم د باطل د پلویانو ټول مکرونه او فریبونه خنثا کیږي او یو ځل به بیا د تېر په څېر له تاریخي ذلت او رسوایۍ سره مخ کېږي.

او نړۍ ته به د عبرت په توګه دا حقیقت یو ځل بیا جوتیږي چې حق تل غالب او باطل مغلوب پاتې کیږي.

ان شاء الله العزیز

# روژې نیولو ۵۰ ګټې!!!

مفتي محمدګل سعید

روژه نیول په مسلمان فرض ده. الله تعالی فرمائي:

#ژباړه: (ای مومنانو! فرض شوې ده په تاسو روژه لکه چې په مخکنیو مسلمانانو فرض شوې وه. ددې لپاره چې په تاسې کې تقوا او پرهيز ګاري پیدا شي)

(د روژې نیولو پنځوس ګټې)

۱: د روژې په هره شپه کې الله تعالی ځینې بنده ګان د اور څخه خلاصوي. (مشکوة ۱۷۳).

۲: د روژې په راتللو سره د دوزخ دروازې بندېږي. (مشکوة ۱۷۳).

۳: د روژې په میاشت کې د لیلة القدر شپه شتون لري چې د زرو شپو څخه غوره ده.

٤: رسول الله (ﷺ) فرمائي: چې د انسان د هر نیک عمل په مقابل کې نیکي زیاتېږي. د یوې نیکۍ په مقابل کې لسو څخه تر ۷۰۰ ځلو پورې نیکۍ زیاتېږي.

* الله تعالی فرمائي: مګر روژه نیول ځکه چې دا زما لپاره ده او زه په دې سره بدله ورکووم. او خپل شهوت او خواړه زما لا کبله پرېږدي.

* روژه نیوونکي لپاره دوه خوشحالۍ دي...

* یو د په روژه ماتي کې او بله خوشحالي چې کله د رب تعالی سره لېدنه کېږي.

* د روژه نیوونکي د خولې خوشبوئي د د مشکو د خوشبوئي څخه هم الله تعالی ډېره خوښوي.

* روژه ډال دی د شیطان او ګناهونو لپاره.

* کله چې انسان روژه وي نو د بې ځایه او ناروا خبرې او شور دې نه کوي. او که څوک ورسره جنګ کوي نو ورته دې ووائي چې زه روژه یم. (مشکوة ۱۷۳).

په پورتني حدیث کې د روژې ګټې دا دي.

۵: روژه په ورځ د الله تعالی سره خبرې کوي. (مشکوة ۱۷۳) الترغیب والترهیب بتحقیق الشیخ البانی مخ ۱٤۰۱ و سنده حسین لغیره.

٦: د روژې اجر د نورو عملونو څخه زیات دی چې د ۱۰ څخه تر ۷۰۰ پورې اجرونه ورکوي.

۷: روژه نیوونکي شهوت او خواړه پرېښودل د الله تعالی لپاره وي.

۸: روژه نیوونکي لپاره خوشحالي ده د روژه ماتي په وخت کې.

۹: روژه نیوونکي لپاره خوشحالي د قیامت په ورځ کې د الله تعالی سره لېدنه ده.

۱۰: د روژه نیونکي خوله ښایسته بوي کوي.

۱۱: د روژه نیونکي د خولې خوشبوئي د الله تعالی په وړاندې د مشکو د خوشبوئي څخه ډېره خوښه ده.

۱۲: روژه د ګناهونو لپاره ډال دی چې انسان پرې بچ کېږي.

۱۳: روژه د شیطان لپاره ډال دی.

۱٤: روژه باطلو ته ډال دی.

۱۵: روژه د دوزخ د اور لپاره ډال دی.

۱٦: روژې سره انسان د بدو خبرو او شور څخه بچ کېږي.

۱۷: روژې سره انسان بدو ردو او جنګ څخه بچ کېږي.

۱۸: روژه نیونکی به جنت ته د باب الریان دروازې څخه ننوځي. (متفقه علیه) مکشوة المصابیح ۱۷۳ مخ.

۱۹: د روژې په راتللو سره شیطانانو او پیریان تړل کېږي. (مشکوة ۱۷۳)



۲۰: د روژې پـه راتللـو سره د جنـت دروازې خلاصـېږي. (مشكوة ۱۷۳)

۲۱: په روژه کې د الله تعالی له لورې اعلان کوونکي اعلان کوي. چې ای د خير غوښتونکيه! د خير غوښتنه کوه. او د شر غوښتونکيه! د شر څخه ځان وساته. (مشكوة ۱۷۳)

۲۲: په دې سره تقوا لاسته راځـي. چـې دا يـو ډېـر سـتر نعمت دی. لکه په پورتنې ايت کـې يـې يادونـه شـوې ده. بيا پنځه پنځوس گڼې په الفوائـد في تزکيـة القلـوب ج ۱ مـخ ۱٦٤ څخه تر ۲۵۵ پورې (الحديث).

۲۳: د روژې مياشت د برکت او د خير مياشت ده. (چـې انسان ته په روژه نيولو حاصلېږي) (مشكوة ۱۷۳).

۲٤: روژه د مسلمانانو لپاره شفارس کوي چې اللـه تعـالی دا بنده وبښه. (مشكوة ۱۷۳).

۲۵: رسوالله (ص) فرمائي: چې هر هغـه انسـان چـې روژه ونيسي. د ايمان د له کبلـه او د ثـواب د غوښـتلو لـه کبلـه يـې مخکني گناهونه ښښل کېږي. (بخاري، مشكوة ۱۷۳).

۲٦: روژه د انســان لپــاره مبوطــه قلعــه ده. الترغيــب والترهيـب بتحقيـق الشـيخ البـاني مـخ ۱٤۰۱ و سـنده حسـين لغيره.

۲۷: د روژې نـسبت الله تعـالی ځانتـه کـړی چـې دا زمـا لپاره ده. ۲۸: روژه کې نفل عبادت الله تعالی په فرضو عبـادتو سره قبلوي. (مشكوة ۱۷۳)

۲۹: روژه کې فـرض عبـادات اللـه تعـالی لـه ۷۰ عبـاداتو قبلوي. (مشكوة ۱۷۳)

۳۰: روژه د صـبر مياشـت ده. او د صـبر ثـواب او بدلـه جنت دی. (مشكوة ۱۷۳)

۳۱: روژه د همدردی او احساناتو مياشت ده. (د فقيرانـو مسکينانو، کونډو ضعيفانو سره) (مشكوة ۱۷۳).

۳۲: د روژې په مياشت الله تعالی دمـومن رزق زيـاتوي. (کله پـه مقـدار سره کله پـه کيفيـت او برکـاتو سره) (مشـكوة ۱۷۳).

۳۳: روژه مـاتی ورکـول روژه دار انسـان تـه پـه دې سره گناهونه ښښل کېـږي او نفـس د اور څخـه اوادېـږي. او پـه دې سره د روژه نيونکې په اندازه ثواب دی. (مشكوة ۱۷۳).

۳٤: هـر انسـان چـې روژه دار مـوړ کـړي. اللـه تعـالی دا داسې حوض څخه اوبه ورکړي. چې بيا به نـه تـږی کېـږي. تـر دې چې جنت ته ننوځي. (مشكوة ۱۷٤).

۳۵: دروژې مياشت اول يې رحمت منځ يې ښښـل او اخـر يې د اور څخه خلاصون دی. (مشكوة ۱۷٤)..

۳٦: روژه دار ته په اخري روژې نيولو سره گناهونـه ښښـل کېږي لکه مزدور ته چې مزدوري په اخر کې ورکول کېـږي. او دا يوازې د ليلة القدر شپې پورې ځانگړې نه ده.

۳۷: جنت ښايسته کېږي روژې تـه د کـال د اول څخـه د کال تر اخره پورې.. نو کله چـې د روژې اولـه ورځ شي. نـو يـو ښايسته هوا راولوځي د عرش څخـه لانـدې د جنـت پـه پـاڼو د جنت په ښايسته حورو باندې او د ا حورې وائي: چـې ای ربـه! وگرځوه موږ ته د جنت والاو څخـه داسـې خانـدان چـې زمـوږ سترگې ورباندې يخې شي او د هغوی سترگې په موږ يخې شي. د پهقي څخه دا روايت نقل شوی دی. (مشكوة ۱۷٤)..

۳۸: په روژه کې سـحور (پيشـمنی) راځـي او پـه دې کـې برکت وي. (مشكوة ۱۷۵).

۳۹: روژه منع کوي نفس د غوښتنو څخه چې نور عباداتو کې دومره قوت نشته دی. قرطبي – ۲۰۹ – ۲

٤۰: روژه د الله تعالی او بنده تر مـنځ يـو راز دی. چـې دا راز بل چا ته نه ښکاري. د الله تعالی څخه پرته نورو تـه او نـور عبادت خو ښکاره وي. قرطبي – ۲۰۹ – ۲

٤۱: رسـول اللـه (ص) فرمـائلي دي: هـر انسـان چـې روژه ونيسي يـوه ورځ د اللـه تعـالی د رضـا لپـاره او پـه دې سره يـې خاتمه وشي. نو دا به جنت ته داخل شي. رواه احمد الترغيـب والترهيب ۱٤۱۰ مخ وصححه الباني.

٤۲: رسول الله (ص) ابو امامة (رض) ته چـې لازمـه ده پـه تا باندې روژه نيول. ځکه ددې برابر نشته دی په اجـر عبـاداتو

او عمل کې. نو ابو امامة ته رسول الله ص) بيا دا عمل وفرمائيلو. رواه النسائي و صححه الباني. ١٤١١مخ.

٤٣: ابو سعيد خدري (رض) فرمائلي دي: چې رسول الله ص) وفرمائيل: هغه انسان چې روژه ونيسي د الله تعالی په لاره کې نو الله تعالی به دده مخ او ذات په دي ورځې د روژې سره د دوزخ د اور څخه اويا کاله لرې کړي. متفق عليه.

٤٤: رسول الله (ص) فرمايلي دي هر هغه انسان چې روژه ونيسي د الله په لاره کې نو د دوزخ اور به ترې د سلو کلنو په مزل لر ې وي. الترغيب والترهيب و صححه الباني.

٤٥: رسول الله (ص) فرمائيلي دي هر هغه تن چې روژه ونيسي د الله تعالی په لاره کې نو الله تعالی به دده او اور تر منځ يوه کنده او لريوالی وگرځوي. لکه د ځمکې او اسمان تر منځ. الترغيب والترهيب

٤٦: رسول الله (ص) چې پنځه لمونځونه او يوه جمعه تر بلې جمعې پورې او روژه تر بلې روژې مياشت پورې دا گناهونه ختموونکی دی هغه څه لپاره چې ددې تر منځ دی. کله چې دا غټو کناهونو څخه ځان ساتي. رواه مسلم الترغيب والترهيب ١٤٢٦.

٤٧: رسول الله (ص) فرمائيلې دي چې ماته جبرائيل (ع) راغلی دی د الله تعالی له لورې چا چې د روژې مياشت ومونده. او ده ته بښنه ونه شوه. او د دوزخ اور ته داخل شو نو الله تعالی دې لرې کړي. نو ته پرې امين وويلو. (روژه نه نونکي ته رسول الله (ص) او جبرائيل (ع) خبره کړې ده. الترغيب والترهيب و صححه الباني ١٤٤٢.

٤٨: رسول الله (ص) فرمائيلي دي چې د الله تعالی لپاره په هر روژه ماتي کې د اور او دوزخ څخه خلاصيدونکي شته دی.

(نو روژی سره انسان د دوزخ نه خلاصېږي. الترغيب والترهيب و صححه الباني١٤٤٢.

٤٩: رسول الله (ص) فرمايلي دي چې د روژې په شپه او ورځ کې انسان الله تعالی د دوزخ څخه بچ کوي. او د مسلمانانو دعا قبلوي. الترغيب والترهيب و صحه الباني. ١٤٤٢.

٥٠: رسول الله (ص) يو صحابي ته وويل: چې ته شاهدي د ايمان، توحيد او رسالت د رسول الله (ص) ورکړې او پنځه وخته لمونځونه کوي او زکات ورکوي. او د روژې روژه نيسې او د شپې د رمضان عبادت کوئ. نو ته د رښتينو شهيدانو څخه يې. الترغيب والترهيب و صححه الباني. ١٤٥٠. مخ..

## په روژه کې درې مهم وختونه!

ليکنه: حامد "افغان"

په روژه کې درې وختونو ته متوجه اوسئ او کوښښ وکړئ چې، پدې وختونو کې ذکر او دعا زيات وکړئ او بايد يوه گړۍ يې هم ضايع نه شي، هغه درې وختونه دا دي:

لومړی وخت:

د سهار له لمانځه وروسته وخت، دا وخت ډير برکتي او خورا مهم وخت دی، په يوه حديث کې راغلي دي چې، ترمذي روايت کړی دی، رسول الله ﷺ وايي: څوک چې د سهار لمونځ په جمعه وکړي، بيا کښيني او الله يادوي، تر څو چې لمر راپورته شي، او بيا دوه رکعته لمونځ وکړي، دې سړي د حج او عمرې هومره ثواب ترلاسه کړ، پوره! پوره! پوره!

عن انس رضي الله عنه عن النبي صل الله عليه وسلم أنه قال: من صلى الفجر في جماعه ثم قعد يذكر الله حتى تطلع الشمس ثم صلى ركعتين كانت له كأجر حجه وعمره تامه تامه تامه.

نو دا وخت د کال په ټولو مياشتو کې اهميت لري؛ خو د روژې په مبارکه مياشت کې بايد دې غنيمت ته متوجه واوسو.

دويم وخت:

له ماښام مخکې وخت د روژه تې لپاره ډير مهم دی، که څه هم ډير خلک دا وخت د روژه ماتي په تيارولو تېروي؛ خو اصلاً بايد دا وخت په ذکر او دعا تير کړل شي، لکه په حديث کې راغلي دي، رسول الله ﷺ وايي: د دريو کسانو دعاگانې قبليږي چې، هغه يو د روژه دار دعا ده، دويم د مظلوم دعا ده او دريم د مسافر دعا ده. سلفو علماو به د ورځې د اخر ډير تعظيم کاوه؛ څکه دا د ورځې پای وي.

دريم وخت:

د سهار له لمانځه مخکې وخت هم ډير مهم او له برکته ډک وخت دی. او قرآن کريم پدې وخت کې د استغفار يادونه کړې ده: (وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ) يعنې: مؤمنان هغه دي چې، په سهار کې استغفار وايي.




# د روژې اجر او ثواب په صحیحو احادیثو کې!

محمد اسحاق تمیم

①ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وویل: کله چې د روژې میاشته راسي، د جنت دروازې خلاصي او د دوزخ دروازې بندي سي، او شیطانان وتړل سي. "بخاري او مسلم"

②د سهل ابن سعد رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه و سلم و فرمایل: د جنت اته ۸ دروازې دي، یوه دروازه یې د ریّان په نامه ده چې یوازې روژه نیووکي پر دې دروازه ننوزي. "بخاری او مسلم"

③د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله علیه السلام وویل: څوک چې روژه د ایمان او ثواب لپاره ونیسي، د ده تېر گناهونه معاف سول، څوک چې د روژې میاشت د ایمان او ثواب لپاره په عبادت تېره کړي، تېر گناهونه یې معاف سول او څوک چې د قدر شپه د ایمان او ثواب لپاره په عبادت تېره کړي، تېر گناهونه یې معاف سول.

"بخاری او مسلم"

④همدغه صحابي بل روایت کوي چې رسول علیه السلام وفرمایل: د ادم د زوی هر نیک عمل په لس څله تر اووه سوه درجې پورې رسېږي، الله وایي: "یوازې روژه ده چې هغه زما لپاره ده او زه ده ته ثواب په دې روژه سره ورکوم، ده زما لپاره نفساني خوندونه او خورک بند کړی دی". د روژاتي لپاره دوې خوشهالۍ دي. یو دا چې کله روژه مات کوي او بل دا چې کله د خپل رب سره ملاقات کوي. د روژاتي د خولې بوی الله ته تر مشکو ډېر خوښ دی. روژه د گناهو په وړاندې سپر دی. کله چې څوک روژه نیسي نو ښکنځل او بدي دې نه وایي، که چا ده ته بد وویل او یا یې جنگ ور سره کوی، نو دی دې ورته ووایي چې زما روژه ده.

ستوري

داچې ستور پېژندونکي توانېدلي چې په لومړی ځل د بلېک هول یا په کهکشان کې دتور غار تصویرونه واخلي چې په یوه لرې پراته کهکشان کې دی، ددې غار اوږدوالی څلور سوه میلیارده کیلومتره بولي او د ساینسپوهانو په خبره د غار ټوله کچه د ځمکې له ټولټال حجمه درې میلیونه څله زیات دی چې ساینسپوهان یې یوه 'لویه بلا ' بولي او پنځه سوه ټریلیونه کیلومتره لیري واقع ده.

اوس به نو د کامل او منصف عقل لرونکی خامخا د دې لویو لویو مخلوقاتو په لېدو سره دې نتیجې ته رسیږي چې د دې تر شاه یو خالق ذات شته ځکه دا مخلوقات یو منظم او مدبر چلونکی خامخا غواړي چې هغه الله ج دي، لدې وجي الله ج په قرآن کریم کې هغه کسانو ته چې د الله ج دوجود او د اخرت سخه انکار کوي او د اسلام دین ته د درواغو خطاب کوي وایي:

دا منکرین او مکذبین د الله ج په دا دومره لویه باچاهي او سلطنت کې چې پر اسمانو او ځمکه یې لري سوچ او فکر نه کوي چې دا خو بغیر له یو مالکه او مدبر څخه منظم نه چلیږي بلکې لازمي یو خالق، چلونکی او کنټرولر لري.

ليکوال: سلطان محمد

# حافظ شهيد شمس الرحمن (رحماني) تقبله الله

## نوم او پیدائش:

د ننګرهار ولایت د حصارک ولسوالۍ د اوفق ځلانده ستوری حافظ شهید شمس الرحمن (رحماني) تقبله الله د چهارګل زوی، دې عبدالعظیم لمسی، د یوې لوړ او نهو زامنو پلار چې مشیر ځوی یې د (۱۳) کلو په عمر ترې پاتي شو، په (۱۳۵۷) هش کال د ننګرهار ولایت د حصارک والسوالۍ د ګاړو په کلي په یوه متدینه، دینداره او عزتمنده کورنۍ کې دنیاته سترګې پرانیستې وې.

## ماشومتوب او زده کړې:

حافظ رحماني له ماشومتوبه ډېر زيرک او اوښيار و، له ديني زده کړو او ارزښتنو سره يې خورا مينه درلوده، ځکه چې د نوموړي کورنۍ بلکې په مجموع کې زياته برخه ګاړی قوم يو متدين، ديندار او عزتمند قوم وو؛ نو ځکه په وه (۷) کلنۍ کې د هجرت په ديار کې د ناصرباغ په کيمپ کې ديني زده کړې پيل کړې، لومړۍ زده کړې يې د خپل کلي په جومات کې له خپل ملا امام څخه پيل کړې؛ خو ځانګړې زده کړې يې په پاکستان د ناصرباغ په کيمپ کې له قاري حکم خان څخه تر لاسه کړې.

نوموړی د زده کړې پر مهال ډېر د ښو اوصافو څښتن و، مثلاً: مؤدب، لمونځ ګزار، صابر د ښو أخلاقو څښتن و.

## اسلامي امارت په ليکو کې خدمت:

حافظ شهيد شمس الرحمن (رحماني) تقبله الله د تحريک په وخت کې د شمال ولايتونو زياتو ساحوته د تشکيل لپاره هم لاړ وو، د امريکا د إشغال پر وړاندې يې لومړی د حصارک ولسوالۍ ولسوال مولوي محمد أنور سره خفيه کار يې کولو، کله چې د حصارک په ولسوالۍ کې د امريکا د روان إشغال پروړاندي لومړی ځل سينه په سينه او ښکاره مبارزه د مجاهدينو لخوا پيل شوه، هغه د حافظ رحماني تقبله الله له مسجد نه د کافرانو په خلاف د الله تعالی لښکري راځرګند شوي او تر نن پورې مقابله لا روانه ده. له دې ورسته نوموړی بيا د ننګرهار ولايت د حصارک ولسوالۍ د مولوي صاحب نورالله حقاني د دلګي سرپرست پاتي شو چې ياد دلګی بيا مولوي صاحب محمد نظامي ته پاتي شو، في الحال د مولوي صاحب محمد نظامي د دلګي يو فعال مجاهد وو، تقريبًا دوه کاله مخکې له خپل فاميل سره د پاکستان خاوري ته مهاجر شو.

حافظ شهيد رحماني په دنيا کې له جهاد او ګرمو سنګرو سره په زړه کې زياته مينه درلودله،، د وخت په تېريدو سره يې په روان جهاد کې د امريکا په خلاف ښکاره قدم پورته کړ، چې په ياده لار کې له هيڅ قسمه سرښندنې ځان دريغ نه کړ.

باالاخره د اخلاص وجه وه، د اسلامي امارت په روان جهادي بهير کې لاندې بېلا بېل خدمتونه سرته ورسول سره له دې چې حافظ به له مسؤليتونو ډېره کوله؛ د مشرانو د امر ډېر منونکی و.

لومړی: د مولوي نورالله حقاني صاحب د دلګي سرپرست.

دوهم: د حصارک ولسوالۍ کميسون عضوه.

دريم: د حصارک ولسوالۍ کميسون سرپرست.

څلورم: د حصارک ولسوالۍ د اکمالاتو او خريدارۍ مسؤل.

پنځم: د ننګرهار ولايت د اکمالاتو او خريدارۍ مسؤل.

شپږم: په داخل کې له خپل ملګري حيدري سره د ټولو مجاهدينو د سترګو تور د حاجي صاحب أحمد په مالي کميسون د اکمالاتو او خريدارۍ مسؤل او د حاجي صاحب له خاص ملګرو څخه و.

اوم: په دا ورستيو کې د ننګرهار ولايت د سرپرستی دنده ورته وسپارل شوه چې د خپلو وينو تر بهيدو پورې يې سرته ورسوله.

یادونه: په حصارک ولسوالۍ کې د زیات مسؤلیتونو نه دا هم سرګند حقیقت دی چې پر حافظ شهید رحماني باندې د مجاهدینو ملګرو زیات باور وو.

## حافظ شهید شمس الرحمن (رحماني) د شخصیت په اړه:

نو موړی یو متواضع، خاکسار، مخلص، زړه سوانده، پاک نفس، د لوړ استعداد، لوړې حوصلې او تجروبې خاوند وو، د صبر یو دنګ منار، د لوړ عالی مورال څښتن وو. له جهادي مصروفیاتو سره یې په خپل کلي کې خلکو ته د دیني زده کړو زمینه هم برابره وله او د مظلومانو کلک طرف دار او له مسلمانانو سره به په هر درد کې شریک وو، د اسلامي امارت په لیکو کې دعامو خلکو جلب او جذب کې لوی رول درلود، د قاري صاحب محترم اصلي مشغوله د الله تعالی په لاره کې مسلح جهاد وو.

په ژبه به یې همیش دا خبره هرچاته ډیره کوله چې ډیر د فتنو دور ده، یا الله! په دغه دنیا کې مو کوم تکلیفونه تېر کړل، ته یې رانه قبول کړه او داخرت له شرمندګۍ نه مو وساته.

د ده نزدې ملګری ابو ذبیح وایي: شهید حافظ رحماني په رښتیا چې د زهد، تقوی، اخلاص، سخاوت، نیکو اخلاقو او میړاني یوه لوی غر وو، د اخلاص یو ځانګړی خصلت درلود، همیشه به یې په شونډو مسکا خپره وه.

د قاري صاحب له ټول غټ کردار دا وو چې د مجاهدینو او کلیوالو تر منځ به چې کله لانجه راتله؛ نو ده به ځان ورسولو هغه به یې خامخا خلاصه وله، او مجاهدینو ته به یې دا خبره ډیره کوله چې له افغانانو سره ډیر احتیاط کوئ، هغوی له هرچا نه په هر وخت کې وزوریدل، دوی نن یوازې داسې چا ته په انتظار دي چې د خپل اسلام تر سیوري لاندې یو داسې امن فضا ورته برابره شي چې خپل مستقبل پرې روښانه کړي او هغه نن مونږ او تاسوته سترګې په لار دي او بس.

## د اسارت او شهادت واقعه یې:

د شهید حافظ رحماني د شهادت واقعه موږ ته د نوموړي د صبر او د وفادارۍ یو نه هیردونکی نمونه وه.

(۱۳۹۸) هش کال د ژمي موسم د هیواد په لر او بر کې په ځانګړي ډول په ننګرهار کې له بل هر کال یو له ازمائشتونو او تکلیفونو ډک کال و، په همدغه حلاتو کې د مشرانو په بیا بیا ټنګار سره نوموړي ته د ننګرهار ولایت سرپرستي ور په غاړه شوه؛ خو قاري صاحب هم بلې خواته د إخلاص او د ایمانداری یو دنګ منار وو، خپله وظیفه یې په همدغه خونړي کال کې له ډیرو دردونو، تکلیفونو بر سیره مخته بوله، یوې خواته د مجاهدینو شهادت، زخمي کېدل او بلې خوا ته شپني عملیاتو کې د ننګرهار مظلوم ولس د شهادتونو او زخمي کېدو دردونه هغه څه و چې قاري صاحب یې سخت زیات زورولو؛ د شهادت نیټه کې درې شیان سرې سخت زوره وي.

لومړی: شهید حافظ رحماني چې پر کوم ځای کې شهید کېدو هلته دوښمن په شپنیو عملیاتو کې عام ولسي وکړي شهیدان کړي و؛ نو قاري صاحب د شهیدانو وارثانو ته د تعزیت او نورو ضروروياتو د پوره کولو لپاره راغلی و.

دوهم: شهید حافظ رحماني په داسې حال کې شهید شو چې دداعش پرخلاف یې د تعارض پلان جوړولو.

دریم: شهید حافظ رحماني په داسې حال کې شهید کېدو چې تقریبًا پنځه میاشتني مسافرۍ وتلې وي او مور کې به یې ویل چې ماته مې خپل زوی راوغواړۍ.

(۱۴۴۰) هق کال د شعبان د میاشتې (۱۴) څوارلسم تاریخ چې د (۱۳۹۸) د حمل میاشتي له (۲۹) تاریخ سره سمون خوري د جمعې په مازدیګر د شیرزادو ولسوالۍ د مرکیخلو په ساحه کې له ملګرو سره په یو مجلس پر صلاح او مشورو بوخت و چې د کفارو له خوا د ډرون په یو بزدلانه او یوه نا ترسه برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید او د تل لپاره یې له مونږ څخه مخښه وکړه. إنّ الله و انّا إليه الراجعون.

نحسبه کذالک و الله حسیب.

روح دې ښاد او یاد دې تل ژوندی.



رحمه الله

# د شهید عبدالله عزام

## د کاریزماتیک شخصیت څو یادونه او خاطرې

لیکنه: دکتور أحمد نوفل

یو پوښتونکي راځخه وپوښتل: ولی شهید عبدالله عـزام ـ رحمه الله ـ د خپل وخت د ډېرو علماؤو او خلکو سره تفاوت درلـود؟ هغه څه ؤ چې دی یې له نورو څخه متفاوت او مُتمایـز ګرځولی ؤ؟ ولی هغه وکولی شول چې د نورو خلکو عقلونه او زړونـه د مقنـاطیس په څېر د خپل ځان په لوري راکش کړي؟

آیا د هغه د تغیر بنستیز لامل د شرعیاتو د پوهنځي لوستل ؤ، او که د هغه وخت علماء، د پوهنتون مضامین، خلک او که بـالآخره د هغه ربنتیني ملګري او دوستان؟

ګرانه وروره! ما د خپل فهم او پوهې سره سم، هڅه کـړې ده پـه دې اړه خپـل خـواب ستاسې مخـې تـه کېـږدم. د هغـه سره پـه وروړګلوی، ځـانګړې دوستـی، دعـوت، یـو ځـای ناستـه پاسـته کـې زیات بل څوک شاید دومره هغه ته نژدې نه وي؛ لکه څومره چې یـو کس (دوکتور أحمد نوفل) چې همدا اوس دا څو کرښې لیکي او هغه له تاسو سره شریکوي.

ډېر ځل داسې شوي دي چې: مونږ دواړو به د شهادت په نیت د جنګ ډګر ته کوز شولو؛ تـر څـو د نـړۍ د ستـر طاغوت او د هغـه وخت د پلویانو سره وجنګېږو، د جنګ ډګر به ډېر تود شو؛ مونږ بـه د مـرګ سره سترګې جنګـولی؛ خـو ددې ټولـو سره سره تقـدیر زمـونږ شهادت د دوی په لاسه نه ؤ لیکلی؛ بلکې لوی څښتن تعالی ـــ جـل جلاله ـ دا شهادت عبدالله عزام صاحب ته د ځمکې پر مخ د یـو لـړ شیطان صفته انسانانو او ډالـري اجیرانـو پـه لاس لیکلی ؤ، دا هـم شاید چې د ایران څخه وي، یا هم د پاکستان او یا هم د ځینې نورو جهتونو او حتی کېدای شي چې پـه خپلـه د عربـو څخـه یـو څـو تنـه وي، چې په دې ستر جنایت کې یې لاس درلـود او بـالآخره د هغـه د وژلو او ترور شومه طرحه یـې پـه لاره واچولـه؛ او هغـه یـې پـه خـورا مظلومیت سره شهید کړ. زه څکه شهید عزام له نژدې نه پېژنم، پوهنځي ولوست.

:۱ بې سارې اخلاص او لوړ حمیده خویونه: د هغـه بـې سـاری اخلاص، لوړ خویونه او د زړه پاکوالی هغه څه ؤو چې نوموړي ته یـې لوړې مرتبې او نړیـوال شـهرت ور وبانبـه، هغـه بـه هېڅ کلـه هـم د دنیاپالنې او دُنیوي د لالچ په خاطر کارونه نه ترسره کـول، او نـه بـه یې هم د ځانپالنې (خودپرستی)، په خاطر چا ته د څه طمعـه پـه زړه کې پالله، بلکـې پـه نومـوړي کـې د ریـا څخـه د ځـان ساتنې صفت دومره غښتلې ؤ چې مونږ یې په اړه تصور هم نشو کولی.

:۲ د قرآن کریم سره زیات مینه: د هغه بله ځانګړنه دا وه چې: د الله تعالی ـ جلت عظمته ـ د کتاب سره یې قوي رابطه درلودله؛ او زه پرته له مبالغې څخه ویلی شم: ما د خپـل وخـت پـه خلکـو کـې د قرآن کریم سره دومره زیات مینه پـال انسـان نـه ؤ لیـدلی؛ او کـه زه ووایم چې: لاس به یې د هغه څخه خالي نه ؤ؛ نو ربنتیا به مې ویلي وي. نه یوازې دا چې قرآنکریم به یې لوسته، بلکـې د هغـه د حفظ سره به یې هم بې کچې مینه په زړه کې پالـله.

:۳ د علم سره زیاته مینه: تل به یې هڅه کوله چـې پـه خپلـه پوهه او فهم کې څه زیات کړي؛ زیاته او دقیقه مطالعه د هغـه بلـه ځانګړنـه وه. همـداراز نومـوړی فقیـه او اصـولي انسـان او قـرآني شخصیت ؤ، د حدیثو په علم کې یې هم زیاته پوهه درلوده او داسې به ډېر کم شرعي علم ؤ چې نوموړي به پرې پوهه نـه درلـوده. د دې ترڅنګ ایماني فِراست او زیاته سیاسي پوهه یې هم درلوده.

:٤ غـوره دعـوتګر او متقـي انسـان ؤ: نومـوړی ددې کلمـې (دعوتګر) په ټوله معنا او مفهوم باندې ښه پوهېـده او د د کلمې پـه ټولو غوښتنو باندې یې ځان سمبال کړی ؤ، ما به تل لیـده چـې زیـار به یې ویسته تـر څـو خلـک د الله تعـالی ـــ جـل جلالـه ـــ لـوري تـه راوبولي. بل دا چې: نوموړی د خورا اغېزمن دعوت څښتن ؤ، او هـر کله به یې چې دعوت کـاوه؛ نـو د هغـه پـاکې ژبـې او دعـوت بـه پـر اورېدونکو خورا زیاته اغېزه پرې ویستله، له دې سره سره به یـې پـه زړه کې د الله تعالی ـ جل جلاله ـ څخه وېره هم پالـله.

:٥ د عبادت په ترسره کولو کې هـوډمن انسـان ؤ: ما د هغـه د شهادت په ورځ چې کله یې جسد زمونږ په مخ کې پروت ؤ، یـو ځـل ورته داسې وویـل: ای ګرانـه شـهیده! ستا نـوم ستا د شخصیت ښکارندوینه کوي، نوم دې عبدالله عِزام ؤ، او تـه پـه ربښـتیا سره د

لـوی څښـتن تعـالی پـه عبـادت او بنـدګۍ کـې تـر ټولـو مخـکښ (عبدالله)؛ او هم د کلک هوډ درلودونکی شخصیت وی (عزام).

یو ځل ورسره مونږ په یوه اوږده سفر کې ملتیا کوله؛ نو تر ډېر اوږده او سترې کوونکي سفر څخه وروسته خپل ځای تـه ورسېدو؛ نو زمونږ ستره تلوسه دا وه چې: ځنګه ژر د خوب لپاره ځای پیدا کړو تر څو لږ ویده شو؛ نو مونږ بـه خپل سرونـه کېښودل او پـه درانـده خوب به ویده شو؛ خو شیخ عزام به لومړی اودس او بیا به یې لمونځ ترسره کړ؛ بیا به هغه هم زمونږ په څېر په درانده خوب ویده شو.

:٦ نفلي روژې نیول: د شهید عبدالله عزام بله مهمـه ځانګړنـه دا وه چې: هغه به هره دوشنبه او پنجشنبه روژه نیوله؛ او کله کله لـه دې ورځو پرته د ذي الحجې لس ورځې روژې هم نیولې.

:٧ تواضع او عاجزي: شاید تاسې به هـم پـه خپله ټولنـه کـې داسې خلک لیدلي وي چې پـه خورا تکلُّف بـه د نـورو سره خبرې کوي؛ پر نورو به ځان لوړ ګڼي، د قناعت په نامه به څه نـه پېژني؛ د خپل شهرت تنده به ورسره وي؛ خو ددې ناوړه صفتونو څخه هاخوا، یو انسان چې خورا متواضع وي؛ د هر ډول تکلُّف نه پرتـه لـه تـاسره خـوړې او نـه سـترې کېدونکي خبرې اتـرې کـوي؛ او لـه تصنع او زحمت پرته له تا سره په ښو او ګټور کارونو تفاهم او قناعت کـوي؛ او د شـهرت غوښـتنې سره کرکـه ولـري؛ نـو پـه رښـتیا سره داسـې انسـان خـورا پـه زړه پـورې او جالـب وي. شـهید عبداللـه عـزام هـم همداسې یو متواضع جهادي رهبر ؤ چې خورا معصوم او مینـه نـاک به برېښېده.

:٨ پراخه سخاوت: داسې ورځ به ډېره کمه وه چې د هغه کـور به له میلمنو څخه خالي ؤ، حتی د شهید عزام د شهادت په ورځ هم د هغه په کور کې څو تنه اُردني میلمنو شتون درلود. دا واقعیت هـم باید ووایم چې: ما به چې کله د ده سخاوت لېده؛ نو ما ته یو بل ورور أحمد قطیش ازایده ـ رحمه الله ـ را په یاد شو؛ هغه به هم لـه خپلـو ورونو او دوستانو سره خورا مینه او خواخوږي کوله. الله تعالی ـ جل جلاله ـ دې پر دوی ټولو باندې ورحمیږي.

:٩ له مسجد سره بې کچې مینـه: د هغـه پـاک زړه بـه تـل لـه مسجد سره مینه کوله، تل به یې هڅه کوله چې له مسجد او جَمعې له لمانځه پرته په بل ځـای کـې خپـل لمونځ تـرسره نـه کـړي، تـر دې پورې چې هغه به په ټولنه کې یو لږ رغنیز کارونـه هـم تـرسره کـول؛ لکه: کله به چې یوې سیمې ته ولاړ؛ او هلته مېشتو خلکو به مسجد نه درلوده؛ نو هڅه به یې کوله چې هلته د اولویتوبونو پـه لـړ کـې تـر هر څه د مخه د دې سیمې خلکو ته یو ښکلی مسجد تأسیس کړي. نوموړي په خپل ژونـد کـې ډېـر مساجد تأسیس کـړي دي؛ لکـه: د عبدالرحمن بـن عـوف مسجد او عـمار بـن یـاسر مسـجدونه.... او داسې نور هغه مساجد دي چې دې مبارک یـې پخپـل لاس د بنسـټ ډېره کېښودې وه.

:١٠ لـه جهـاد سره زیاتـه مینـه: هـر کلـه بـه چـې د جهـاد لـه سنګرونو څخه د جهاد او مرستې غوښتلو غږ راپورتـه شـو؛ نـو د یـو بااحساسه مسلمان په څېر بـه د حـق د مبارزې لپـاره راولاړ شـو او د مظلومو انسانانو سره د مرستې لپاره به یې د زمـري پـه څېـر د جنګ ډګـر تـه وردانګل. تـل بـه یـې د مسلمانانو د یـووالي، همپـالنې او د مسـلمانانو سره د خواخـوږۍ لپـاره هلـې ځلـې کـولې. ددې ټولـو بوختیـاوو، سـتونزو او خنـډونو سره سره یـې خپـل اصـلي وطـن (فلسطین) یوه شېبه هم له یاده نه ویسته. دا خبره دلته څکه کـوم؛ چې یو لږ خلکو به پرې نیوکه کوله چې: فلسطین یې ولی پرې ایښی ؤ او دلته د افغانستان د مظلوم او بې وزله ولس سره د مرستې لپـاره راغلی ؤ.

:١١ له تنظیمي تعصب سره کرکه: نوموړي به تل له خپلو ټولو مسلمانانو ورونړو سره بې کچې مینه کوله؛ او د ټولـو تنظیمونو مینـه والو به داسې ګڼله چې: نوموړی له مونږ سره انډوله (یو شـان) مینـه کوي. که څـه هـم چـې نومـوړی پـه فکري لحاظ اِخوانُ المسلمین نړیوال اسلامي ګوند تـه منسـوب او تړلـی شخصـیت ؤ، ولـې دا کـار هېڅکله ددې مانع او خنډ نـه دی ګرځېدلی چـې: لـه نـورو سره دې پرتلیـز سـلوک او تعصـب وکـړي؛ او د افغـاني سیاسـتوالو او ځینـو مشرانو په څېر هېڅ کله به یـې اسـتراتېژیکي ګټـې او منافع د خپلـو شخصي ګټو څخه نه قربانولې او یو لـه دوی څخـه بـه یـې پـر نـورو باندې مُقدَّم او مُعتبر نه ګڼلو. هېڅکله به یې داسې نه کـول چـې: د نـورو غلطـۍ او نیمګړتیـاوې ولټـوي؛ او بیـا یـې د ځینـو چـارواکو او زورواکو په څېر وځیي، بلکې که چېرې به یې په چا کې کومـه غلطـي ولېدله؛ نو په خورا حکمت او لطافت سره به یې نیوکه پرې کولـه او د نورو غلطۍ به یې اصلاح کولې.

:١٢ خپلو کړو ژمنو ته وفادار او د حیاء څښـتن ؤ: د نوموړي د غوره خصائلو څخه بل خصلت دا ؤ چې: د خورا ښـو او نرمـو اخلاقـو خاوند ؤ. شهید عزام د خپل ځان لپاره دومـره غـوره اخـلاق را جمـع کړي ؤ، چې: هغه پرې وکولای شول شاوخوا خلک ښکار کـړي؛ او د شهوت پال او مُغرِض انسان پرته به بل هېڅ چا له هغه سره کرکه او نفرت نه درلوده.

:١٣ د پاک زړه او ضمیر خاوند ؤ: داسې پاک او سـلیم زړه یـې درلود چې: کرکې او نفرت، بدبیني او بدګمانیو ته پکې ځای خالي نه ؤ. تر څو چې به یې له چا څخه شر نه ؤ لېدلی؛ نو تـل بـه یـې هڅه

کوله تر څو پر خپلو دوستانو باندی ښه گومان ولري. ټولو تـه گـران او له ټولو سره ربښتینی ؤ.

:۱٤ د ټول اسلامي أمت دردونه يې خپل دردونه گڼل: نوموړي به د ټول اسلامي امت په اړه فکر کاوه او دهغې په روانو کړکېچونو او سیاسي اوضاعو باندې به یې فکر کاوه؛ او د مسلمانانو دردونه به یې خپل دردونه گڼل. د هغه ستره هیله او تلوسه دا وه چې: څه ډول د ټولو مسـلمانانو سره وکولای شي مرسـته وکـړم، د خپـل تـوان سره سم څنگه کېدلای شي چې خیر ټولو ته ور ورسوم او د اسلامي امت د موجوده ستونزو په هوارولو کې رغنده ونډه ولرم.

:۱٥ د پراخې آیـډیالوژۍ او روشـن فکـر څښـتن ؤ: وروسـتی جملې په څېر باید ووایم چې: د قدرمن شهید عبدالله عزام صـفتونه او مناقب له دې څخه خورا زیات ول؛ کوم چې دلتـه تاسـو ولوسـتل.

مونږ پرې ښه گومان کوو او مونږ یې له دې څخه هم لوړ گڼو. هغه څکه د نورو علماؤو سره توپیر درلود چې: دا ډول حمیده خصلتونه او لوړ اخلاقي معیارونه یې درلودل؛ کوم چې تاسـې ولوسـتل او د یـوې پراخې آیډیالوژۍ خاوند ؤ. هغه پـه ربښـتیا سره هغـه کاریزماتیـک او مقناطیسي شخصیت ؤ چې لکه: د آهن ربـا پـه څېـر بـه یـې د خلکو عقلونه او زړونه د ځان په لوري را کش کول.

لوی څښتن تعالی دې پرې ورحمیږي؛ او د هغـه تېروتنـې دې په خپل بې ساري رحمت سره وبخښي؛ خو دا چې اوس ولی ډېر څه تغیر شوي دي؟ نو ددې پوښتنې په ځواب کې باید ووایو چې: دا خو معلومه خبره ده چې دنیا هم ثابته نه ده، بلکې تل د تغیر او بدلون په حالت کې ده او دا ډگیز حقیقت خو له دې وروسته زیـات تفصیل او روڼتیا ته اړتیا هم نلري.

# ژړا او طب

نوراحمد عایل

یوې ډلې پوهانو د خپلو څېړنو په پایله کې ثابته کړې ده چې ځینې وختونه ژړا د دردونو، ناراحتیو او فشارونو لپاره ډېره گټوره ده.

ډېره به مو دا جمله چې خندا د هر درد لپاره دوا ده، اوربدلې وي، خو کله، کله ژړل هم د ذهني فشار او ناراحتي لپاره گټوره کېدای شي.

ډاکټران او څېړونکي له مودو راهیسې د خندا په اهمیت او د زړه لپاره په سلامتیا او د انسان د زخمونو د رغون لپـاره تـر څېړنـې لانـدې نیولې ده، خو اوس ځینې نورې پایلې ښیي د ناراحتي، غمونو او ذهني فشار پروخت ژړا تـر ډېـره مهمـه او ښـه ده، نـه دا چې سـړی د خپلو غمونو، او مشکلاتو فواري وزغمي او په ځان کې یې پټې کړي.

د امریکا د میني سوټا ایالت څېړونکي وايي: ژړا کولای شي د ۸۸، ۸ سلنه کسانو روحیه پیاوړې، د ذهني فشار، سټریس او عصبانیت کم کړي او د بدن د دفاعي سیستم کچه لوړه کړي.

دا څېړونکي وايي: ځینې وخت هغه خلک چې د غمونو او فشارونو اومشکلاتو پروخت وژاړي له ژړا وروسته ښه کېږي څکه چې پـه دې سره یې مشکلات او ناراحتي له خپله ځانه ایسته شړلې وي

او همدارنگه په ژړا سره هغه مضر ترکیبات چې ممکن د سټریس په درلودلو سره په بدن کې تولید شوي وي په ژړا سره له منځه ځي، او همدارنگه احساسي ژړا د پرولاکتین هارمون ترشح کوي چې عصبانیت او مشکل پیداکوونکي احساسات کموي او د انسان د دفاعي سیستم د له تقویت سره کومک کوي.

درویش درانی وايي:

ارمانجن زړگی مې سپک شو چې مې اوښکې شوې روانې
داسې شومــــه لکه وي، چې اوبـــو وړي ارمـــانونه
بیلتون سخت دی صبر گران دی بهانې زور غـواړي بې حده
اوس به ته هم یې پېښمانه. ما هم کــــړي ارمانونه
دي پراته راته درویـــــشه! د زړگي په ویـــجاړ غولي
ژوبل، ژوبل ارمـــــــانونه، مـــړي مـــړي ارمانونه




# ملت گرسنه و جرگهٔ میلیونی

الهام‌الدین سادات

هر چند قانون اساسی اداره کابل لویه جرگه را عالی‌ترین مظهر قدرت و اراده مردمان افغانستان می‌داند و از هشت قانون اساسی در طول تاریخ افغانستان، در شش تای آن یک فصل کامل به لویه جرگه اختصاص داده شده است؛ اما آنچه عملاً به نظر می‌رسد تا به حال هیچ لویه جرگه‌یی مطابق به تعریف قانون و با ترکیب اعضا و کارشیوه‌هایی که قوانین متذکره پیش‌بینی کرده اند، برگزار نشده است.

گذشته از مخالفت تحریک طالبان و شمار زیادی از رهبران سیاسی و تاثیرگذار افغانستان با این جرگه، تحریم آن از سوی ریاست اجرایی به عنوان شریک قدرت و نیمی از بدنهٔ سیاسی حکومت افغانستان، کمپاینی بودن و نبودن این نشست و اینکه آیا این نشست با این همه کاستی‌های بزرگش برای رسیدن به صلح موثر واقع خواهد شد یا نه؛ آنچه را در این نبشته به بحث خواهیم گرفت، تأثیرات منفی برگزاری این جرگه بر اقتصاد افغانستان خواهد بود.

برمبنای فرمان رییس اداره کابل در رابطه به برگزاری جرگه مشورتی صلح، وزارت مالیه مکلف است تا مصارف مالی این جرگه را مطابق پیشنهاد رییس کمیسیون از کود (۹۱) تأمین نماید؛ وزارت مالیه افغانستان نیز گزارش داده است که برای برگزاری این جرگه ۳۶۹ میلیون افغانی که نزدیک به پنج ملیون دالر می‌شود از کود ۹۱ ریاست‌جمهوری به مصرف خواهد رسید.

وقتی وارد بحث تأثیرات منفی برگزاری لویه جرگه مشورتی صلح بر اقتصاد افغانستان می‌شویم، فقط همین ۳۶۹ میلیون افغانی‌یی که برای مصارف برگزاری این نشست بر باد داده می‌شود، مورد بحث نبوده بلکه با تأثیرات منفی‌یی که از رخصتی یک هفته‌یی این جرگه بر اقتصاد نیمه جان کشور ما وارد می‌گردد نیز روبه‌رو هستیم که در ذیل به جزییات به بحث گرفته خواهد شد.

هرگاه بخواهیم روزهای رخصتی کشور را بشماریم؛ دیده می‌شود که در یک سال ۵۲ روز جمعه و ۵۲ روز پنجشنبه داریم (هر چند در این اواخر رخصتی روزهای پنجشنبه در کابل برداشته شده است، ولی سر و صداهایی برای جاگزینی رخصتی روز شنبه با آن وجود دارد)؛ اگر بر این ۱۰۴ روز رخصتی هفته‌وار، رخصتی‌های دیگری را نیز بیفزاییم، تعداد رخصتی‌های رسمی سالانه ما به حدود ۱۱۵ روز می‌رسد و هرگاه بخواهیم رخصتی‌های درج ناشده در تقویم را که به مناسبت کنفرانس‌ها و نشست‌ها ملی و بین‌المللی و تولد و وفات شخصیت‌ها سپری می‌کنم نیز برین رقم اضافه کنیم؛ پایتخت کشور ما از لحاظ رخصتی‌ها، مقام نخست در جهان را به خود اختصاص خواهد داد.

در آخرین مورد، وزارت کار و امور اجتماعی رژیم کابل تمامی ادارات خصوصی و دولتی مقیم پایتخت را از تاریخ ۷ ثور تا ۱۲ ثور سال جاری، به دلیل برگزاری لویه جرگه مشورتی صلح، شش روز مکمل رخصت اعلام کرده است.

آنچنانی که قبلاً متذکر شدیم، در کنار به عقب افتادن کار مردم و ادارات دولتی در این یک هفته رخصتی، میلیون‌ها افغانی بر اقتصاد حکومت و سکتور خصوصی افغانستان وارد می‌گردد؛ از دید تعدادی از اقتصاددانان و بنابر آماری که وجود دارد حدود ۸۰ هزار مأمور در شهر کابل مصروف اجرای وظیفه دولتی هستند که دولت در جریان این ۶ روز رخصتی بدون اینکه این مأمورین کاری را انجام داده باشند؛ حداقل حدود ۱۴۴ میلیون افغانی را به عنوان معاش بدون کار به آنها می‌پردازد.

مأسفانه تأثیرات منفی رخصتی یک هفته‌یی لویه جرگهٔ مشورتی صلح به ارقام فوق خلاصه نشده و سکتور خصوصی و تجار کشور نیز خسارات جبران ناپذیری را از این ناحیه متقبل

می‌شوند؛ اتاق تجارت و صنایع افغانستان پیش از این نیز چنین رخصتی‌هایی را به زیان مردم و تجار کشور دانسته و بیان داشته بود که هر روز رخصتی، حدود دو میلیون دالر یا ۱۴۸ میلیون افغانی، به سکتور خصوصی زیان وارد می‌کند که هرگاه این ۱۴۸ میلیون در روز را به ۶ روز ضرب بزنیم؛ ضرر وارده بر سکتور خصوصی از ناحیه برگزاری لویه جرگه مشورتی صلح بالغ بر ۸۸۸ میلیون افغانی می‌شود.

با محاسبهٔ کُلی از جمعِ ۳۶۹ میلیون افغانی مصارف برگزاری لویه جرگه مشورتی صلح، ۱۴۴ میلیون افغانی معاش رایگان و بدون کاری که به مأمورین در جریان این ۶ روز پرداخت می‌گردد و ۸۸۸ میلیون افغانی زیانی که به سکتور خصوصی کشور وارد می‌گردد؛ به رقم حیرت‌آور ۱۴۰۱۰۰۰۰۰۰ (یک میلیارد و چهارصد و یک میلیون) افغانی یا حدود ۱۹ ملیون دالر بر می‌خوریم؛ که مجموعهٔ هزینهٔ برگزاری لویه جرگه مشورتی صلح در فقط شش روز خواهد بود.

با توجه به ارقام سرمام آور فوق، و با توجه به اقتصاد نیم جان افغانستان؛ سوالی که ذهن هر صاحب بصیرتی را به خود مشغول ساخته است اینست که آیا منطقی خواهد بود تا برای جرگه‌یی با این همه کاستی‌ها؛ چنین رقم بزرگی را هزینه نمایم؟

اگر پس از ختم جرگه به نتیجهٔ مطلوب که همانا برقراری صلح در افغانستان است نرسیم ونخواهیم رسید؛ چه کسی پاسخگوی این ضرر اقتصادی بزرگی که بر ملت شکم گرسنهٔ ما تحمیل شده است، خواهد بود؟!

# مرګ تریخ حقیقت دی!

جبیر افغان

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: هوښیار سړی هغه دی چې د مرګ وروسته ژوند لپاره عمل وکړي.

کله مو په واقعي ډول د مرګ تصور کړی دی چې یوه ورځ د دغه حقیقت سره مخ کېدونکي یو.؟ زړه مو په پاتي کېدونکې دنیا پورې تړلی او آخرت مو هېر دی.

یو وخت په تیاره ځای کې په حاضر دماغ، ویښ زړه او پټو سترګو په سکون سره د ځان سره دا تصور وکړئ چې:

ملک الموت مي سر ته ولاړ ده، په روح کې یې چنګونه را اچولي او په داسي ډېر مي روح کاږي لکه د لندو ونیو ښخه چې اغزنه لښته کښل کیږي؛ زني یې راوتړلې؛ د غسل لپاره پر تخته پروت یم؛ خلګ مي په ستر کې لاس را وهي خو زه دومره بې بسه یم، چې د هغوی لاس نشم نیولی؛ غسل یې راکړ؛ په کفن کې مي سر تر نوکه پېچي، جنازه مي پر اوږو بار شوه او د هغه لمانځه لپاره خلګ صفونه راپسي ودرېدل، چې مابه یې هیڅ باک نه کاوه او قضاء کاوه به مي او نن هم دایم د ژوند په دې آخري لمانځه کې هم شریک نه یم؛ د خاورو دوه فوټه ځای کې یې واچولم؛ یوې خواته مخ نه شم اړولی؛ هره خوا مي دېوالونه دي؛ د قبر خښتي یې راپسي ودرولې او په منونو خاوري یې راباندي انبار کړې.

نن په دې توره له هیبته ډکه کنده کې ته خپلو ټولو قریبانو او دوستانو یوازي پرېښودلې، حتی هغي مور دي هم یوازي پرېښودلې چې ستا د سر درد به یې هم نشو زغملی؛ نه دي ورور شته نه پلار، نه دي خور شته نه مور، نه دي مال شته نه جایداد. دلته اوس یوازي ته او ستا عمل پاته شوئ، که نېک عمل و خو جنت او که بد عمل و، نو وحشت، عذاب، اور، دوزخ، ماران، لړمان، حشرات خزندې ... هر ډول عذاب درته تیار دی.

خو مسلمانه وروره! سر راپورته کړه تر اوسه لا ته په دې دنیا کې یې؛ ته د عمل لپاره وخت لرې؛ ته خپل رب راضي کولی شې؛ ته موقع او فرصت په لاس کې لرې؛ ته خپل قبر روښان ګرځولی شې. نور غفلت پرېږده خپل رب راضي کړه، نیک عمل وکړه او راسه زما سره په ګډه خپل رب ته د زړه له اخلاصه توبه وکاږه او استغفر الله راسره ووایه، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: د قیامت په ورځ دي هغه چاته خوشالي وي چې په عمل نامه کې یې زیات استغفار وموندل شي.

استغفرالله العظیم و اتوب الیه من الذنب الذي اعلم و من الذنب الذي لا اعلم

# دباچا تاثیر

## په ملت اونظام باندې

لیکوال صابرجان

کیسه کا چې دپخوا په زمانه کښې یوملنګ مزاجه سړی و چې ډیر زیات عمر یې درلودی دهمدې وخت نظام شاهي و

چې دده په وخت کښې دباچا دمړینې وروسته دباچا زوی دملک چارې په غاړه واخیستلې اوباچا شو او دباچا د زوی دمرګ څخه وروسته دباچالمسی دملک باچا شو

څه وخت چې دباچا لمسی باچاشو څه موده وروسته یې همدا سپین ږیری ملنګ راوغوښتی اوپوښتنه یې تري وکړل

چې تاخو زما اوزمادپلار اوزما د نیکه حکومتونه لیدلي دي.

اوس داراته ووایه چې په موږ کې ښه سړی کوم یو و؟

ملنګ ورته وویل چې ستانیکه نه غل و اونه فاحش و

ستا پلار غل و خو فاحش نه و

مګر ته هم غل یې اوهم فاحش یې

باچا چې دملنګ خبري واوریدلې ډیرغصه شو اوملنګ ته یې وویل چې اوس به ددې خپلو خبرو ثبوت وړاندي کوي

کنه په الله قسم تابه دبهتان ویلولامله محکمه کوم

ملنګ ورته وویل چې کله ستانیکه باچا و زما ځواني وه زه په یوحجره کې طالب وم دشپې مهال یوه پیغله انجلۍ چې ډیر ښایسته وه ماته راغلل اوماته یې وویل چې دازما دغاړې د سرو زرو قیمت لرونکې امیل واخله اوددې سره سره زماسره زناء هم وکړه

زه چې سره له دې تازه پر ځوانی راغلی وم مګربیاهم دپیغلې خبرو خورابد تاثیر راباندې وکړې اوپیغله مې په رټلو اوزور له خپلې حجرې وایستل

وخت تیریده کله چې ستا دپلار باچاهي راغلل ستادپلار دباچاهي څوکلونه وشول یوه ورځ مې دهغې پیغلې کیسه ذهن کې راوګرځیدل خوراډیر ارمان مې وکړې چې خیر زناء که دې نه ورسره کول هغه دسرو زرو امیل خوبه دې تري اخیستی وای

ستادپلار دباچاهي ترپای ته رسیدو پورې مې همدا ارمان کاوه چې کاش امیل دې تري ولجه کړی وای

مګر اوس چې ستا باچاهي ده سره له دې چې زه ډیر سپین ږیری شوی هم یم اوجنسي قوه مې صفر ته نژدې شوې ده

خو اوس چې دهغې پیغلې کیسه ذهن کې رایاده کړم وایم کاش چې دهغې پیغلې څخه مې هم امیل اخیستی وای اوهم مې زناء ورسره کړې وای اوس هم دزناء او هم دامیل ارمان کوم

دباچا تاثیر په ملت پروت وي نوداچې ته هم غل یې اوهم فاحش یې ځکه د زناء اوامیل دواړو ارمان کوم

پلار چې دې یوائې غل و نوځکه مې هغه وخت یوائې دامیل ارمان کاوه

اونیکه چې دې سم سړی و ځکه هغه وخت دواړه کاره بد راباندې پریوتل

ددې پورته کیسې په تائد زه هم دخپلو سترګو د درې باچاهانو کیسه درسره شریکوم کیدای شي تاسې هم لیدلي وي

دامیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله په وخت کښې دوه کسان دهلمند چې یو ملاعبدالولي کوکه نومیده اوبل ملاعمرجان نومیده طالبان وه داخلګ دطالبانو په دور کښې سم صحي خلګ وه دطالبانو دسقوط

وروسته دې خلګو نه مال اونه جایداد درلودی اودطالبانو په وخت کښې یې هم هیڅ غیرشرعي کار نه کاوه

خوکله چې د دوهم باچا حامدکرزی دوره راغلل همدا دوه کسان دکرزی حکومت ته داخل شول یود موسی قلعه قومندان شو نوم یې کوکه شو بل دنادعلي قومندان شو نوم یې عمرجان حقمل شو دهلمند خلګ یې پیژني چې دې کسانو دکرزي په وخت کښې دومره غلاګاني ظلمونه او وحشت وکړی چې دانسانیت ترسرحد واوښتل په لښکرګاه او کابل کښې بنګلې ودرولې

دلواطت لپاره به یې دوه دري کشران هلکان دځان سره ګرځول دهلکانو په رقص کولو یې اوس هم یوتیوب ډک دی

دریم باچا چې زه یې په مشاهده وینم هغه اشرف غني دی

پنځه کاله مخکې داشرف غني دکمپاین وخت و

غني په کمپایني خبرو کښې عطانور ته وویل که زه باچاشوم نوکه مې ته په شپږ میاشتې کې دبلخ له ولایته لیرې نه کړې زه به دانسان زوی نه یم بلکې دخزه زوی به یم ماچې کله هغه وخت کښې دده داخبره واوریدل نوحیران شوم چې یوکس دریاست جمهوري دعوه کوي اودومره سپکه لهجه کاروي همداسې غني ځوځله داسې ښکنځلماره لهجه کار کړې ده لکه چې یو ورځ یې ویل دپلار وطن دې راسره شریک دی یایې یوبل وخت وویل چې دښځې پروني به پر سرکوم

دایې هغه خبرې وې چې دمیډیا مخکې کړې وې خودمیډیاترشاه دکابل پوهنتون یو استاد راته وویل چې دپوهنتون دریاست په وخت کښې غني ډیر بد رد استادانو اومحصلینو ته ویل

همدا خاطر و چې دغني په وخت کښې ښکنځلماري ناموسي ښکنځلې خپل اوج ته ورسیدلې

که مو یاد وي دکرزي په وخت کښې پر تولنیزو رسنیو هیڅ ښکنځل او بد رد ویل نه وه که څه هم کرزی غل مفسد اوغلام و خو ښکنځلمار نه و

مګر کله چې غني باچا شو راډیوګانو راپور ورکړی چې په یوه هفته کښې اشرف غني ته میلیونونه ښکنځل شوي

همدارنګه تاسې اوس دغني پلویان وینی چې په لایف بحثونو کښې په ساعتونو ساعتونو خپلو مخالفینو ته اویاهم خپل ترمنځ یوبل ته ناموسي ښکنځلې کوي حتی دچا په مور خور اوعزت باندې صرفه نه کوي

نو داچې دغني پلویان ښکنځلمار دي اوښکنځل کوي

تاسې دغني دپلویانو اوګنډ خانیانو ګیله مه کوی ځکه دادغني تاثیر پر دوی پروت دی غني خپله ښکنځلمار دی چې پلویان یې هم ښکنځل کوي.





# د سوريې حکومت سره د روسيې اوږد حمايت

# او د بشار ستره ډالۍ

حسن مومند

دمحترمو لوستوالو په علم کې ده چې په شام کې د ولسمشر- بشارالاسد پرضد د راپورته شوي ولسي- پاڅون په څېلو کې ، ايران، د لبنان حزب الله او روسې د بشارالاسد سره اوږه په اوږه ودرېدل؛ يادو درې واړو خپل ټول زور وکاراوه؛خپل ټول وحشت يې ښکاره کړ او په سني مېشتو سيمو کې يې ښه ډېر بې گناه انسانان ووژل؛آباد ستر ښارونه يې په کنډوالو بدل کړل ؛ په مليونو انسانان يې دخپلو کورونو نه هجرت کولو ته اړکړل او پدې لار کې يې دغربي نړۍ دنمايشي- مخالفت څه پروا هم ونه ساتله اورښتيا داده چې داسبابو پدې نړۍ کې همدوئ بشارالاسد بچ کړ که ددوئ فوځي حمايت نه واى ډېر وراندې به دبشار واکمني له منځه تللې وه .

نو بشارالاسد ددې درې واړو داحسان پوروړی دی خو دروسې داحسان بار پرې له نورو دواړو څکه زيات دی چې دعقيدوي ملحوظاتو پرته يې ورسره مرسته کړې او په داسې وخت کې يې ترشا ودرېدلې چې دبشارالاسد نه مخالفينو ډېر ستر ښارونه نيولې وو،دواک ساحه يې ډېره محدوده شوې وه او دمخالفينو په لاس يې اداره ړنګېدو ته بيخي نږدې وه؛ بس دا دروسې طيارو نه درانده بمونه و چې دمخالفينو په واک کې سيمو باندې به ورغورځېدل؛او ترهغې به پرې بمبار روان و چې ترڅو به هغه سيمه دانسانانو له وجود نه په کلي ډول پاکه او ابادي به يې دخاورو سره خاورې شوى نه وه؛ بيابه دبشارالاسد وحشي- ملېشې ورغلې دفتحې بيرغونه به يې په همدې سيموکې ودرول او سيمه به مفتوحه او ددښمن دشتون نه پاکه وګڼل شوه.

دا چې روسې دبشارالاسد په شتون کې خپلې مادي گټې لېدلې نو څکه يې دا ټول وحشت پرغاړه واخست او ترپايه يې په پوره ډاډ دبشارالاسد دې حمايت ته ادامه ورکړه او چې مخالفينو شکست وخوړ او دهېواد کابو ټولې برخې بيرته دبشارالاسد دفوځونو ترواک لاندې راغلې نو اوس پرروسې هم دبشارالاسد له لورې هغه لورينې شروع شويدي دکومو لپاره چې يې دبشارالاسد دا دومره اوږد حمايت وکړچې دطرطوس بندر روسې ته ورکول ددې لړۍ لومړۍ ستره کړۍ ده او رښتيا دا ده چې روسې ته دبشارله لورې دا ډېره ستره ډالۍ ده.

دروسې دلومړي وزير مرستيال يوري بوريسوف دتېرې شنبې په ورځ دمشق ته دسفر پرمهال دشام دولسمشر- بشارالاسد سره دليدنې نه پس مطبوعاتي کانفرانس ته دوينا پرمهال دويل دشام ولسمشر بشارالاسد سره يې دطرطوس بندر په هکله خبره وکړه او هغه دې ته

چمتــو شــو چــې د۴۹ کلونــو لپــاره دطرطـوس بنـدر روسـې تـه پـه اجـاره ورکړي چې دهغـه دچمتـووالي نـه پـس ددواړو هېوادونو تـرمنځ پـدې اړه تـړون لاسليک شو؛روسي شرکتونـو ددې بنـدر دترميم لپاره پلان ترتيب کړی او ډېر ژر به پدې اړه نور پرمختګ رامنځته شي.

روســـي تـــه ددې خـــو راســـتر ســتراتيجيک او ډېــر زيـات مهـم بنـدر دورکول کېدو خبر دټولو شاميانو لپـاره ډېر حيرانونکی دی نو ځکه نېږدې ټولو دولت پلوو خلکو هم دټولنيزو رسنيو له لارې ددولـــت ددې اقـــدام سره خپـــل مخالفت ښکاره کړ او سـخت انتقادونـه يـې پـرې وکـړل چـې دولـت دخلکـو انتقادونودسختي ورخطايي سره مخـامخ کړی او ددې انتقادونو دمخنيوي لپاره يې يوه ناکامه هڅه هم کړې ؛ دټرانسپورټ وزير يې ويلي دي چې دا بندر روسې تـه پـه اجـاره نـدی ورکـړل شـوی بلکـې دا دمسکو يو شرکت ته دتوسيع او تـرميم لپــاره ورکــړل شــويدی او دا معاملــه دخپلمنځي کاروباري شرکت نتيجه ده.

خو هرڅوک پوهېږي چې دروسي دلـومړي وزيـر مرسـتيال يـوه مسـئوله مرجـع ده ؛هغـه چـې پـه دمشـق کـې ودرېږي ؛مطبوعـاتي کـانفرانس کـوي او وايي چې دشام نه يې طرطوس په اجـاره اخستی اوپدې اړه ددواړو اړخونـوترمنځ تړون هم رامنځته شوی نو پـه مطبوعـاتي کــانفرانس کــې هغــه هيڅکلــه هــم نامسـئولانه خـبرې نـه شي کـولی بلکـې اصل خبره داده چې دټرانسپورټ وزير د شـاميانو دخولـو بنـدولو ناکـام کوښـښ کوي.

دمنځني ختيځ دچارو پوهـان وايـې چې روسې چې دتېرو ۸ کلونـو راهيسـې د بشارالاسد پرضد راپورتـه شـوی ولسي پاڅون پـه ځـومره بـې دردۍ وځپلـو او ددې لپاره يې خپل ټول فوځي وسـايل پـه کار واچول اوس روسې دخپل دې فوځي استراتيجيکې مرستې دمزد دترلاسه کولو لړۍ پيـل کـړيـده چې دطرطـوس تـړون ددې لړۍ ړومبۍ کړۍ ده.

له دې وړاندې دروان مـيلادي کـال په ړومبۍ مياشت کې په شام کې دتېلـو او ګازو د لټون په نوم دروسي شرکتونـو سره څو تړونونـه هـم رامنځتـه شـويدي چـې پـه اجـاره بانـدې دطرطـوس بنـدر ترلاسه کول هم دهمدې لړۍ برخه ده.

شـامي شـنونکی سـعود وايـې چـې دمشق پـوهېږي چـې روسيه دايـران پـه څېر دمذهبي او فرقه ايـزو موخـو لپـاره کار نه کوي بلکې روسيه داقتصادي ګټو لپـاره پـه منځنـي ختيـځ کـې خپـل ځـان غښتلی کوي نو ځکه يې دايران په پرتله روسـې تـه تـرجيح ورکـړې او ورتـه دپانګونې زيات چانسونه ورکوي.

روسيه او ايران دواړه پـه شـام کـې دقـوي حريفـانو پـه توګـه ديـو بـل نـه دمخکي والي هڅې او هريو غواړي چې دشام دولـت يـې ترزيـاتو اغيـزو لانـدې وي.

خـو دچـارو پوهـان وايـې چـې دبشارالاسد ميلان دروسـې پرلـور زيـات دی ځکه چې دايران مذهبي تعصب هغه ته معلوم دی او نـه غـواړي چـې دايـران دزيات نفـوذ لـه املـه يـې هېـواد بيـا پـه مذهبي او فرقه ايزو شخړو کې اخته شي ځکه چې دعراق حالات دهغه مخـې تـه دي.

ددې ترڅنـګ روسـيه پـه امنيـت شوری کـې دويټـو حـق لـري ؛دملګـرو ملتونو په اداري کې دشام پرضد احـتمالي وړانـدې کېـدونکو تړونونـو دويټـو تمـه تــرې کېــږي؛دا هــم لــه پامــه نــه شي غورځيدای چې روسيه يـو نړيـوال سـتر اتومي ځواک دی چې د شـام پـه ګومـان دنـورو نړيوالـو زبرځواکونـو نـه دشـام دساتنې توان لـري او دا هـم تريـو حـده مهمه ده چې شام دپخواني شوروي اتحـاد مهم اتحادي او د بعث مهم فکـري غـړی و ددې ترڅنـــګ طرطـــوس دروســـې دفوځي اډې حميميم سره نېږدې موقعيت او دا ټولــه ســيمه دروســـې لپـــاره د ستراتيجيک او اقتصادي اهميت لرونکې ده نو دې ټولو خبرو ته په پام سره روسې ته دطرطوس بندر ورکول حتمي و.

دشامي اپوزيسيون قـانوني کميټـې روسـې تـه دطرطـوس بنـدر پـه اجـاره




ورکول سیاسي خیانت گڼلی او په کلکه یې رد کړیدی.

طرطوس بندر په ۱۹۶۰ م کال کې ورباندې یو شمېر عربي او نورو بهرنو شرکتونو کار پیل کړی و؛ دکار پړومبۍ مرحله یې په ۱۹۶۶ م کې تکمیل او کار اخستل ترې پیل شو.

دا بندر ډېر ستراتیجیک اهمیت لري؛ د بحرابیض متوسط دا بندر دټول منځني ختیځ لپاره ډېر مهم بندر دی ځکه چې په یو وخت کې داروپا؛ بحر اسود او ټولو عربو هېوادونو نه راغلي سمندري جازونه استقبالوي.

دا بندر لا له وړاندې دروسې تراستعمال لاندې دی.

شوروي اتحاد ددې بندر نه دکار اخستلو لپاره په ۱۹۷۱م کې دشام دولت سره تړون لاسلیک کړی و چې پدې سره په بحرابیض متوسط کې دشوروي اتحاد دقدم ایښودلو ستر ارمان پوره شوی و .

داتړون بیاپه ۱۹۹۱م کال کې دشوروي اتحاد دسقوط سره سم له منځه ولاړ خو روسانو بندر په کلي ډول له لاسه ورنکړ او دلته یې دشام ددولت په اجازه خپل یو شمېر فوځیان پرېښودل.

په ۲۰۱۱ م کې دبشارالاسد پرضد دولسي پاڅون پرمهال روسې بیا د شام نه ددې بندر په اجاره اخستلو غوښتنه وکړه خو دولسي مخالفت دزیاتوالي له ویرې بشارالاسد روسې ته مثبت ځواب ورنکړ. کله چې په ۲۰۱۲ م کې امریکا او اتحادیانو یې پرشام دحملې گواښونه وکړل نو روسې دموکې نه په استفادې دفوځي وسلو او وسایلو نه ډک خپل دوه سمندري جازونه ددې بندر ته راوستل چې پدې کار عربو رسنیو شور جوړ او داېې خطرناک عمل وگڼلو خو دا چې دلته دبشارالاسد پرضد ولسي پاڅون زور اخستی و نو څه ډېره توجو ورته ونه شوه.

هسې خو دبشارالاسد پرضد دولسي پاڅون سره سم روسې دهغه ددولت سره خپل حمایت اعلان کړی و خو د ۲۰۱۵ م کال دستمبر په ۳۰ مه نېټه یې دبشارالاسد په غوښتنې شام ته دخپلو فوځونو استول اعلان کړل او ورسره سم یې دبشارپه مخالفینو هوایي بریدونو ته سخت زور ورکړ.

د۲۰۱۷ م کال په دسمبر میاشت کې روسې دخپلو فوځونو راویستل اعلان کړل خو دچارو پوهانو ویلي و چې داهسې دخلکو په سترگو کې دخاورو اچولو هڅې دي او دا داسې اعلانونه دي چې په هیڅ صورت عملي بڼه نه شي لرلای؛ نه شام دروسي فوځونو وتل غواړي اونه هم روسیه .

روسیه دلته خپلې ډېرې اقتصادي گټې ویني چې دخپل فوځي حضور په صورت کې یې ورته تحقق اسان ښکاري او دشام اداره چې دداخلي اوخارجي گڼو گواښونو سره مخامخ ده دروسې فوځي حضور دځان لپاره غنیمت گڼي؛نو دروسې فوځونو دوتلو اعلان دولس دمخالفت راکمولو یو هڅه ده اوبس .

دې شنونکو چې څه ربښتیا یې ویل اوس هم د دمشق، ادلب، حسکه، لاذقیه، حماه، درعا، دیرالزور،الرقه او حمص په شمول په ۱۱ ځایونو کې دروسې فوځي اډې شتون لري چې شاید تردېرې زمانې به دا وي او داسې نه ښکاري چې ژر به دا اډې ختمې شي .



# بیعت او طاعت

## په اسلام کې!!

راټولونه: ابن الشهید ازره وال

څومره چې د اسلام خدمت او پېژندل ضروري دي دغسې داسلامي احکامو زده کړه او پوهه هم خورا ډېره ضروری ده، بیا په ځانګړې ډول د اسلامی دولت او واکمنۍ چارې دکومو پر مټ چې اسلام دنړۍ تر پیځکو رسېدلی پېژندل هم ډېرې اړینې دي؛ ځکه په دې امورو کې د ناپوهۍ او جهالت ضرر متعدي وي او خورا ډېرې بدې پایلې په میراث پرېږدي، همدا ناپوهي ده چې ډېر واري یې له امله مسلمانانو ګټل شوې سوبې له لاسه ور کړي او د نه هیریدونکو قربانیو پایله کې یوازې ناهیلي او مایوسي ورپاتې شوې، د قربانیانو د هغو سترو ارمانونو ځلې له خاورو سره خاورې شوي دي.

خو لله الحمد موږ سره قرآني او نبوي لار ښو ونې شته که په غور نظر ورته وشي او دعمل جامه ور واغوستل شي، هیڅکله به څوک بیا په داسې فتنو کې راښکیل نه شي، او نه به مسلمانان د تېر پځېر د ناکامۍ او پسماندګۍ ښکار شي.

قرآني او نبوي لار ښوونې دنورو احکامو په پرتله انسانانو ته په بیعت او طاعت زیات ټینګار او بیا بیا یادونه کوي ځکه بیعت او طاعت د مسلمانانو د وحدت او یوالي تر ټولو ستر لامل دی او داسلامي ټولنې روح او یو پیاوړی ځواک دی تر کومه چې د بیعت او طاعت سلسله په کامله توګه په مسلمانانو کې روانه وي تر هغه به اسلامي ټولنه ځواکمنه او بریالۍ وي خو کله چې مسلمانانو دغه صفت له لاسه ورکړی مسلمه امت دزوال پلور کوچېدلی، لنډه داچې د اسلامي ټولنې پیاوړي تیا د هغوی یوالي ته په کتور سره ده.

همدغه و چې دنبوت له مبارک پېر سره نږدې دبیعت او طاعت لړۍ پیل شوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې له چا سره بیعت کاوه هغه ته به تر هر څه دمخه په طاعت امر کاو، هیڅاته یې له طاعت پرته دبیعت لاس نه دی ور او اوږد کړی.

اوکومو صحابه کرامو چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بیعت وکړ الله جل جلاله هغه خپل بیعت باله

لکه فرمايي: (إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ)

او الله جل جلاله له بیعت کونکو خپله رضا څرګنده کړه.

او له هر شرعي امیر سره بیعت رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل بیعت ګڼلی، نو له امیر سره بیعت له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بیعت دی او له رسول الله صلی الله علیه وسلم بیعت له الله جل جلاله سره بیعت دی.

او کوم کسان چې به داسې حال کې ومري، چې بیعت یې لا نه وي کړی رسول الله صلی الله علیه وسلم یې مرګ د جاهلیت مرګ بللی لکه فرمايي:

(وَمَنْ مَاتَ، وَلَيْسَ فِي عُنُقِهِ بَيْعَةٌ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً ".) رواه مسلم کتاب الامارة.

دغه راز د طاعت په اړه هم رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

چاچې زما طاعت وکړ په حقیقت کې هغه د الله جل جلاله طاعت وکړ او چاچې زما نافرماني وکړه، په حقیقت کې هغه د الله جل جلاله نافرماني وکړه او چاچې دامیر طاعت وکړ هغه زما طاعت وکړاو چاچې دامیر نافرماني وکړه هغه زما نافرماني وکړه.

لکه فرمايي: عن ابي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ، وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللَّهَ، وَمَنْ أَطَاعَ أَمِيرِي فَقَدْ أَطَاعَنِي، وَمَنْ عَصَى أَمِيرِي فَقَدْ عَصَانِي (رواه صحيح البخاري كتاب الاحكام)

دېته ورته ډېر احاديث شته چې د طاعت ستاينې او دنافرماني زورنې پکې بيان شوي؛ خو دا چې دليکنې حوصله تنګه ده،

دلته دطاعت په اړه مورِ ديوې باعزمه افغانۍ ميرمنې دستر عزم او له مسلمان امير سره د اخلاص او داطاعت يوه کيسه ليکو:

که څه هم زمونږ دټولنې مسلمانو مېرمنو دېته ورته ډېرې له مېړانې او عزم ډکې کيسې تکرار کړي، خو زمونږ نيمګړتيا داده چې تر ورسته نسلونو مو دډېرو کمو اتلانو اتلولۍ اوکارنامې رسولي.

دا مېرمن عينو نوميده: عينو ادې هغه کندهارۍ ميرمن ده چې کله احمد شاه بابا له خپلو لښکرو سره د هند له جګړې څخه راستون شو، تياره ماښام کندهار ته راورسېدل، احمدشاه بابا امر وکړ چې د لښکر ټول غړي دې همدلته شپه تېره کړي، سبا به کورونو ته دتلو اجازه ورکولی شي، يوتن په همدې شپه په پټه خپل کور ته روان شو، کله يې چې دکور دروازه وټکوله مېرمن يې راغله ويې ويل: څوک يې؟ ميړه يې وويل: زه يم! دروازه راخلاصه کړه! دځو مياشتو مسافر داحمد شاه بابا د لښکر غړي ته دغې باعزمه مېرمنې وويل: پدې نيمه شپه کې څنګه راغلې، له خپل سرلښکر يا سپه سالار څخه دې اجازه را اخستې کنه؟ دعينو ادې ميړه وويل: اجازه مې نه ده را اخستې په پټه را غلی يم دروازه ژر راته خلاصه کړه! دغې باعزمه مېرمن ورته وويل: ترڅو دې چې دلښکر سالار څخه اجازه نه وي را اخستې ته زما مخ نه شې کتلای! او نه درته دننه دراتلو اجازه درکوم او له دروازې څخه بېرته راستنه شوه

هغه ناچاره بيرته دلښکر ملګروته ورغی چې سهار شو خپل مشر ته يې بيګانۍ کيسه وکړه په پای کې خبره احمد شاه بابا ته ورسېده، احمدشاه بابا دغه باعزمه مېرمن را وغوښتله او يو کاريز ځمکه يې په انعام کې ورکړه چې دعينو کاريز په نوم ياديږي (له طالب مشرانو سره شېږ ورځې: ۳۰۹ مخ)

دغه مېرمن څومره ديانتداره وه چې د امير د يوې نافرمانۍ له امله يې خپل خاوند دځو مياشتو مسافر په نيمه شپه له دروازې ستون کړ تر څو امير اجازه واخله او بيا کورته راشه.

په ياده موضوع (بيعت او طاعت) با احساسه او دتاند قلم څښتن محترم ورور [الحافظ مولوي محمد عطاءالحق الکابولي الموسهوي] (حفظه الله ورعاه) قدم پورته کړی او د موضوع په اړه يې يو بهترين کتاب ليکلی.

کوم چې په پښتو ژبه د بيعت او اطاعت په موضوع لومړی کتاب دی.

نوموړی د وخت نزاکت او اړتيا ته په کتو سره خورا ډېره مهمه موضوع په داسې ډول څېړلې چې د موضوع او کتاب حق يې ادا کړی چې ستاسو علمي تنده پرې ماته شي،

نوموړی کتاب د ډېرو خصوصياتو او ځانګړنو يوه بهترينه مجموعه ده، او مؤلف يې دکتاب په ترتيب کې ډېر زيار ويستلي

او دقلم په نوک يې موضوع ته په فام سره پوره تحقيق، علمي نکتې او ډېرې باريکۍ راڅرګندې کړي،

له دې سره سره په کتاب باندې د هېواد د نامتو، محقق او مدقق عالم شيخ الحديث حضرت مولانا نور الله منير صاحب تقريظ هم کښل شوی

**د کتاب منځ پانګه:**

ياد کتاب ټولې ۲۹۲ صفحې لري او دوه بابونو ته وېشل شوی دی.

لومړی باب بيعت ته ځانګړی شوی او دا باب ۱٦ فصلونه لري او دبيعت په اړه ښه مفصل بحث پکې شوی او دويم باب يې طاعت ته ځانګړی شوی او دا باب ۱۳ بېلا بېل فصلونه لري او داطاعت په موضوع رڼا اچول شوې او له هر فصل لاندې مختلف عنوانونه راوړل شوي.

د کتاب په راوړل شويو احکامو کې زيار کښل شوی چې د هرې مسئلې لپاره لو مړی استدلال له قراني ايتونو، نبوي احاديثو او دفقهې او سياست له بنسټيزو او معتبرو کتابونو د فقهاوو د استدلال مطابق شوی او له دې سره دپښتو ادبياتو پکې ځانګړي پاملرنه شوې.



ترتیب :مفتی منور

# دخوارجو خصوصیات

## او څرنګوالی درسول اللّه ﷺ دصحیحو احادیثو له نظره:

قال رسول الله (ص): يَأْتِي فِي آخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ:

په روستی زمانه کې به داسی قوم (خلک) راشی چې:

-١ حُدَثَاءُ الأَسْنَانِ

دوی به کم سن ځوانان وي

-٢ سُفَهَاءُ الأَحْلاَمِ

بی حکمته (ناپوهان به وی)

-٣ يَقُولُونَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ

درسول الله صلی الله علیه وسلم بهترینه! احادیث اوخبری به رانقلوی.

٤- يَقْـرَءُونَ الْقُـرْآنَ لَـا يُجَـاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ

د قران تلاوت به کوی خو له مری به یی ښکته نه ځی

(قرآن به لولی خو له ستونی به یی نه کښته کیږی.)

-٥ يَقْتُلُونَ أَهْلَ الإِسْلاَمِ.

اهل اسلام به وژنی (دمسلمانانو په قتل پسی به وی)

-٦ وَيَـدَعُونَ أَهْـلَ الأَوْثَـانِ

بت پرستان به پریږدی

(تولہ توجه به یی دمسلمانانو په لور وی له کفارو سربه دوستان وی)

٧- يَخْرُجُونَ عَلَى حِينِ فُرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ

دمسلمانانو د اختلاف پرمهال به را وځي

(دمسلمانانو اختلافاتو ته به لمن وهی شپه ورځ به یی په ځان یوه کړی وی او اختلافات به لا پسی ډیر وی)

٨- تَحْقِـرُونَ صَـلاَتَكُمْ مَـعَ صَلاَتِهِمْ وَصِيَامَكُمْ مَعَ صِيَامِهِمْوَعَمَلَكُمْ مَعَ عَمَلِهِم

په عباداتو کې به ډیر کوشش کوی (ستاسو عبادت به دهغوی عباداتو هیڅ هم نه ښکاری خپل عبادات به دهغوی دعباداتو پروړاندی حقیر ګڼي)

٩- يَتَعَمَّقُونَ فِي الدِّينِ حَتَّى يَخْرُجُوا مِنْه

د دین په جزیاتو کې به ډیر تعمق اوسختګیریانی کوي حتی چې په دی کارسره به له دین نه بهرشی (د نورو مسلمانانو هرعمل به ناروا خلاف داسلام اوبدعت ګڼی یواځی به خپل عمل ورته سم ښکاری)

١٠- يَخْرُجُونَ عَلَى خَيْرِ فِرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ

تل به له بهترینه دخلکو سره په لانجه اوجګړه وی (تل به له دینی علما

او دملت دصالحینو سره په بحث اومناظرو اخته وی)

-۱۱ یَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ وَلَيْسُوا مِنْهُ فِي شَيْءٍ

شعار یی دکتاب الله دی خو له قرآن سره ډیره فاصله لری

۱۲- انْطَلَقُوا إِلَى آيَات نَزَلَتْ فِي الكُفَّارِ، فَجَعَلُوهَا عَلَى الْمُؤْمِنِينَ

هغه آیاتونه چې دکفاروپه اړه نازل شوی وی هغه به پرمسلمانانوتطبیق وی.

۱۳- كُلَّمَا خَرَجَ قَرْنٌ قُطِعَ أَكْثَرَ مِنْ عِشْرِينَ مَرَّة

هرځلی چې قوت وموميږ دوباره ضعیفه شي اوتر شل ځلی ډیر دغه کار ادامه پیدا کوی.

۱۴- يَقْبِضُ العِلْمَ بِقَبْضِ العُلَمَاءِ، حَتَّى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا

اکثره یی علم لځانه زده کوی له هیڅ عالم څخه یی دعلم زدکړه نه وی کړی اوجاهلان به یی مشران وی.

۱۵- فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا

ډیری فتوا ورکوی

چې تری وپوښتی پرته له علم اوپوهی به فتوا درکووی دوی خوګمراه دی خونور هم ګمراه کووی

۱۶- يُحَدِّثُونَكُمْ مَا لَمْ تَسْمَعُوا أَنْتُمْ، وَلَا آبَاؤُكُمْ

داسی خبری کوی چې تاسی به نه وی اوریدلی اونه به ستاسو پلرونو اوریدلی وی

(داسی څه به وایی چې دینداره عادی خلکو به نه وی اوریدلی اونه به یی له علماؤ څخه زده کړی وی دوی به داسی فکر کوی چې د دین مجتهدان دی له دوی نه مخکې خلک ټول ګمراهان و) [رواه البخاری (ش۳۳٤٤ او۱۰۰ او۳٦۱۰ او۳٦۱۱ او ۵۰۵۸ ؛وج۹ص۱٦ مسلم (ج۲ص۷٤۱؛ج۱ص۱۲) ابن ابي عاصم، السنه (ش۹۳۰) (ابوداود (ش٤۷٦۵) /ابن ماجه (ش۱۷٤)]



# ۷۰ کاله ژوند مو څنګه تیریږي؟

۲۵ کاله پکې ویده کیږو
۸ کاله درسونه پکې وایوو
۶ کاله استراحت کوو.
۷ کاله په رخصتیو او تفریح تیروو.
۵ کاله له نورو سره په خبرو تیروو.
۴ کاله په خوراک تیروو
۳ کاله په رفت امد تیروو
نو شاوخوا ۱۲ کاله د ښه او بهترین کار لپاره پاتې کیږي
نو د خپلې ورې شیبې سره هم پام کوئ او چټې يې له لاسه مه ورکوئ!
هغه هم په دې شرط چې په افغانستان کې ۷۰ کاله ژوندی پاتې شې، دلته خو ژوند بای چانس دی، که ورغلې که پاتې شوې.

# د کابل د استشهادي بریدونو په اړه

## د اسلامي امارت د ویاند څرګندونې

په شپږ ساعته جګړه کې د اشغالګرو ۴۰ روزونکي او لسګونه کورني غلامان ووژل شول

د الفتح عملیاتو په جریان کې نن د کابل ښار شهرنو سیمه کې د کاونټرپارټ په نامه یوه امریکایي شبکه تر فدایي برید لاندې ونیول شوه.

**پیل:** په لومړی برید سره چې غرمه مهال شاوخوا ۱۲ بجې پیل شو، په یوه تکتیکي چاودنې کې د کاونټرپارټ شبکې امنیتي حصار مات کړل شو، درنه چاودنه رامنځته شوه، په چاودنه کې د نوموړې شبکې امنیتي کمربند دړې وړې شو، وروسته ۳ تنه فدایي مجاهدین هریو (حمزه د پروان، حذیفه د کنړ او حافظ محمد د کندهار) چې په سپکو او درنو وسلو، چاودیدونکو توکو، اور غورځونکو وسائلو او انفجاري واسکټونو سمبال وو د یادې شبکې مرکز ته داخل شول او هلته یې له لومړۍ چاودنې څخه باقي پاتې بهرني اشغالګر او کورني غلامان تر ګوزارونو لاندې ونیول.

**د جګړې دوام:** فدایي مجاهدینو له ورکړل شوي پلان سره سم، ودانۍ پورته شول او په دښمن باندې یې عملیات پیل کړل.

ټول اطاقونه یې یو یو تلاشي کړل، په کې میشت افراد یې ووژل، په ودانۍ کې یې درنې چاودنې رامنځته کړې.

**د دښمن تلفات:** یاد مرکز له ډیرې مودې راهیسې د اسلامي امارت د کشفي مجاهدینو تر څار او تقعیب لاندې وو، دلته به لـه ۴۰ څخه تـر ۵۰ پورې بهرنیو روزونکو د کابل ادارې امنیتي ارګانونو او نورو غړوته په افغانستان کې د اشغالګرو د موخو د تطبیق روزنه ورکوله. همدا ډول په یاد ځای کې لسګونه کورني غلامان هم اوسیدل.

په ننیو فدایي عملیاتو کې په دغه مرکز کې د لسګونو بهرنیو اشغالګرو په ګډون ګن شمیر کوروني غلامان هم وژل شوي او ټپیان دي.

همدا ډول له بهر څخه په راتلونکو عسکرو، پولیسو او استخباراتي افسرانو چې د برید د کابوکولو هڅې یې کولې هم عملیات ترسره شول چې په تقریبا شپږ ساعته جګړه کې د لوړ پوړو افسرانو په ګډون ګڼ شمیر عسکر وژل شوي او ټپیان دي.

**د برید هدف:** د کاونټرپارټ په نامه دغې امریکایي شبکې په ۲۰۱۳ م کال کې فعالیت پیل کړ او د هرو ۵ کلونو د پلانونو د تطبیق لپاره د امریکا د پراخ شیطاني جال (USAID) لخوا ۷۰ میلونه ډالر بودیجه ورکول کیده چې په افغانستان کې یې د امریکا د اشغالګرانه موخو لپاره کار کاوه.

په دغه شبکه کې د کابل ادارې له مشر اشرف غني رانیولې تر ټیټ پوړو غلامانو پورې ټولو ونډه درلوده او خپلې خپلې برنامې یې له لارې تطبیقولې، همدا راز د کابل ادارې په انتخاباتي پروسو کې یې هم فعاله برخه اخیسته.

دغې شبکې د کابل ادارې عسکرو ته د هغوی په اصطلاح د ظرفیتونو د لوړیدو په برخه کې زده کړې ورکولې چې د امریکـایي اشـغالګرو پرځـای کـورني غلامان هم د اشغالګرو د عسکرو په څیر وحشت، ظلم، وژنې، د اسلامي مقدساتو سره دښمني، د مسجد، مدرسې، ملا او دیني عالم سره کرکه او نفرت ولري او په وراندې یې له خورا قساوت څخه کار واخلي. د کابل ادارې په استخباراتي چوکاټ کې د صفریک، صفردو او نورو وحشي ځواکونو ظلمونه چې هیڅ انسـاني او اسلامي حدود نه پیژني د همدا ډول شبکو د فعالیت نتیجه ده.

بلې خوا دغې شبکې له کابل ادارې سره د ښځو او نارینه وو ترمنځ د مختلط نظام د تشویق لپاره هم ډیر کار کړی چې له امله یې د اشـغال پـه اتلـس کلنـه دوره کې په ښارې او د کابل ادارې تر تسلط لاندې ساحو کې پراخ اخلاقي فساد، له اسلامي ارزښتونو سره دښمني او حتی په ځینو مواردو کې لـه اسـلام څخـه عدول او په اسلامي قوانینو نیوکې د همدې شبکې د شاګردانو دنده ده. یاده شبکه د امریکایي (USAID) په مالي مرسته د افغان انجیل په نامه برنامه هـم تـر لاس لاندې لري چې زموږ د ټولنې په انحراف او بې دینۍ کې ورڅخه کار اخلي. لنډه داچې لکه څومره چې امریکایي نظامیانو په نظامي برخـه کـې زمـوږ د هیـواد د تخریب، بربادۍ، له اسلام څخه د لیرې کیدو او د اشغالګرو هیوادونو د شومو اهدافو د ترلاسه کیدو لپاره کار کاوه، همدومره دغې شبکې هـم زمـوږ د ټـولنې د معنوي بربادۍ او تباهۍ لپاره ملاتړلې وه.

د اسلامي امارت سرسپارلي مجاهدین لکه څرنګه چې له ښکاره دښمن سره د جهاد په سنګرونو کې په مبارزه او کلکه مقابله بوخت دي، د اشغالګرو د پټـو او استخباراتي ځالو د له منځه ورلو لپاره هم همدومره قوي هوډ او عزم لري. نن چې د کابل په ښارکې دننه د لسګونو زره امنیتـي ځواکونـو ، بیلابیلـو امکانـاتو، تکنالوژۍ او غورځو پرځو سره سره بیا هم زموږ استشهادي مجاهدین په اطمئنان سره خپل هدف ته ځان رسولی شي او هلته د ساعتونو لپاره پـه دښـمن عـدالت پلی کولای شي، دا معنا لري چې ملت د دغو شومو بنسټونو په وړاندې هم له مجاهدینو سره همغږې دی او په وړاندې یې مبارزه کوي.

د امریکایي سفارت او یوشمیر نورو اشغالګرو او د هغو د ملاتړو نهادونو لخوا په دغه برید باندې غبرګونونه ښودل ښکاره کوي چې دلتـه دښـمن سـخت ګوزار خوړلی دی. که داسې نه وي، زموږ هیوادوال شاهدان دي چې هره ورځ په امریکایي بمباروںو او چاپو او د غلامانو په ړندو بریـدونو کـې لسـګونه ملکـي هیوادوال شهیدانیږي، مساجد، مدارس، کلینیکونه، بازارونه، کلي او ملکي کورونه قصداً نړول کیږي، خو په وړاندې یې دغه نهادونه سپن هم نه کوي.

**د برید پیغام:** که اشغالګره امریکا او ورسره همکار غلامان یې له خپلو شومو کړونو، اسلام ضد او افغـان ضـد پروګرامونـو څخـه را ونـه ګرځـي، د اسلامي امارت مجاهدین به یې په خورا محفوظو ځالو کې هم پیدا او عدالت پرې پلی کړي. ان شاءالله وماذالک علی الله بعزیز

ذبیح الله مجاهد د اسلامي امارت ویندوی

۱۴۴۰/۹/۳هـ ق ۱۳۹۸/۲/۱۸هـ ش ـ ۲۰۱۹/۵/۸م

Srak Magazine

# خانواده های شهدا را فراموش نکنیم!

در ماه مبارک رمضان قرار داریم، ماه پر فیض و برکت، ماهی که در آن فصل جدیدی از نحوهٔ زندگی برای بشریت با نزول قرآن کریم در یکی از شب های پر برکت آن باز، و نور و روشنایی، به مانند صبح صادق بالای جامعه پرتو افگند، که در نتیجه مردم از تاریکی های ظلم، جهالت، خودپرستی و بت پرستی نجات یافتند.

رمضان ۱۴۴۰ هجری را در حالی استقبال می کنیم که وضعیت کشور بحرانی است و مردم از ناحیهٔ اقتصادی ضعیف اند، اشغالگران و غلامان حلقه به گوش آن ها به خاطر نهادینه ساختن ارزش های پوچ شیطانی شان، هر روز و هر شب خون می ریزند و خون می خورند، خانه های مردم را که جز مسلمانی جرم دیگری ندارند، ویران و منهدم می سازند.

از فیوضات رمضان در حالی مستفیض می شویم که جهاد و مقاومت جاری افغان ها در برابر اشغالگران غربی و مزدوران شان، همه ساله هزاران نفر فرزندان این ملت را قربانی می گیرد و هزاران خانواده بی فرزند و بی سرپرست می شوند. همچنان صدها نفر دیگر زخمی می شوند و یا هم در اسارت دشمن وحشی قرار می گیرند.

بنا بر آنچه ذکر شد مسئولیت بزرگی متوجه ما مسلمانان است، تا در همه فصل سال و خصوصا درین ماه مبارک رمضان خانواده های شهدا، اسرا و زخمی ها را فراموش نکنیم، زیرا اینها روح و پیکر شان را به خاطر اعلای کلمة الله و اقامه شریعت اسلامی فدا نمودند، اعضای بدن خویش را از دست دادند و یا هم پشت دروازه های زندان های جهنمی جنایتکاران وقت اسیر شدند.

کمک و همکاری به فقیر و کفالت یتیم وجیبهٔ انسانی و اسلامی هر مسلمان است و دارای اجر بزرگ می باشد؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم در پیوند به کفالت یتیم می فرماید :" «أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ فِي الْجَنَّةِ هَكَذَا» وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى، وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا.".[روایت بخاری از سهل بن سعد] ترجمه : «من و سرپرست یتیم، اینگونه در بهشت می باشیم، اشاره به انگشت سبابه و میانه اش نموده و آنها را از هم گشاده داشت». در روایت دیگر از ابوهریره رضی الله عنه چنین آمده : «رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمود : کسیکه سرپرستی یتیم خود و یا بیگانه ای را بنماید، من و او مانند این دو در بهشت می باشیم. راوی که مالک بن انس رضی الله عنه بود، به دو انگشت سبابه و وسطایش اشاره نمود» روایت مسلم.

همچنین در چندین آیات قرآن کریم به بزرگی اجر این مسئله اشاره شده است؛ به عنوان نمونه الله عزوجل در سورهٔ انسان صفات مردان مومن و اهل بهشت را می شمارد و در میان مواصفات شان از طعام دادن به یتیم و اسیر ذکر به عمل می آورد و می فرماید: « وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ». ترجمه: و غذا را با این که (نیاز و) دوست دارند به «مسکین» و «یتیم» و «اسیر» می‌بخشند.

پس چه زیباست که در پهلوی زینت بخشیدن دسترخوان خویش با انواع و اقسام خوراک ها و خوردنی ها، دسترخوان ایتام و خانواده های اسراء را هم رنگین سازیم، شادی و سرور را به دلهای شان بیاوریم و با این کار خویش به آنها دلداری دهیم و وعده های را که با دوستان شهید خویش کرده بودیم عملی سازیم تا بازماندگان شهداء مایوس نگردند، نا امید نشوند و به دوستان و احباب شهیدِ خویش بدگمان نگردند.

همچنان ما عید سعید فطر را پیشرو داریم ما درین روز کالاها و لباس جدید می پوشیم، چپلی و بوت نو به پای خود و فرزندان خود می کنیم، عمامه و چادر زیبا و ملون خریدای می نماییم، پس ما نباید بازماندگان شهدا را فراموش کنیم، باید هرچه در توان و استطاعت خویش داریم با آنها همکاری کنیم، به پای فرزندان شان بوت و به سر دختران شان چادر بیفگنیم تا شادی و سرور مختص به ما نشده بلکه خانواده های شهداء هم در آن شریک باشند.

به به ! چقدر زیباست که بازماندهٔ شهید در فقدان عزیز خویش اظهار دلتنگی و خستگی نکند!

چقدر خوشایند است که در روزهای عید فرزند شهید همرنگ فرزندان ما لباس به تن داشته باشد و در کنار و در قطار آنها به تفریح و ساعت تیری بپردازد!

چقدر خوشبخت است که کسیکه مال و سرمایهٔ خویش را در خدمت خانوادهٔ شهداء، ایتام، اسراء، مجروحین و فقراء به مصرف می رساند و مصداق این حدیث میگردد که رسول الله صلی الله علیه و سلم می فرماید:" نِعْمَ الْمَالُ الصَّالِحُ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ.".[روایت ابن حبان] ترجمه : «چه خوب است مال نیکو برای مرد نیکو». و حقا که این مصرف بیهوده نرفته بلکه نزد رب الارباب با اضعاف بزرگ جمع خواهد شد و روزی که زن و فرزند از انسان می گریزند و هر کس در پی نجات نفس خویش است این «باقیات الصالحات» به درد انسان مومن می خورد و دستش را می گیرد تا پریشان نگردد و مایوس نشود.

"وحید روستایی"